خواته پوره کړه . ددی لپاره چې دا کار صحیح شوی وی نو ته باید ... وکړی».

---

پورتنی مثال ښئ چې ښوونکی د شاګرد د کار تحسین هم کوی لکه: «ډیر ښه» . په دی مثال کی د کار معیار ته هم اشاره شوی لکه «په ډیر ښه توګه کار ...» «دا په پخپله ښه ښت نشی» ..... صحیح میتود» او داسی نور.
په پورتنی مثال کی انتقاد هم شته او وئ ښودل چې ښه کار باید څنګه ترسره شی لکه: «تا باید اطمینان حاصل کړی وای چې د لاس موازنه صحیح وه او کړ نه».

---

لنډیز:

خپلو شاګردانو ته د امکان تر حده پوری د هغوی د کار د معیار په هکله معلومات ورکړی. ښه کار وښه ستایئ خو دی په څنګ دا هم ورته واضح کړی چې څنګه باید غلطي اصلاح کړي.

---

۱-۵ وضاحت:

ستاسی تدریس باید ډیر واضح وی. څه چې تاسی وائی باید شاګردانئ واوري او څه چې لیکی شاګردانئ ولوستلی شی. پورتنی خبره هر چا ته ښکاره خو کله ناکله ورته پاملرنه نه کوی. ډول ښوونکی په دی عقیده دی چې هغه څه چې هغوی وائی او یا ئې لیکی واضح دی. آیا دا خبره رښتیا ده؟ ایا شاګردان هغه څه لوستلی شی چې تاسی ئی لیکلی؟ دیو بل ښوونکی څخه وغواړی چې د صنف په اخر کی کینی او وګوری چې هر څه په واضح ډول لیدلی او یا اوریدلی شی. دیو درس په اخر کی تخته ته وګوری چې هر څه مو واضح لیکلی او که نه. ایا تاسی کولی

شي چې خپل خط ولولي؟ که چيرې تاسي خپل خط نشي لوستلئ نو شاګردان به هغه هيڅکله ونشي لوستلی .



«څه چې تاسي وائئ شايد شاګردان ئې واوري ، خو په حقيقت کې به پرې نه پوهيږي»

"څه چې تاسي وائئ شايد شاګردان ئې واوري ، خو په حقيقت کې به پرې نه پوهيږي . " دا صحيح ده چه تاسي د شاګردانو په نسبت ډير تعليم کړی او غواړئ چې مختلفې کلمې استعمال کړئ او ممکن په لوړه سويه خبرې وکړئ . که دا رښتيا وي ، نو دا به ستاسي د شاګردانو لپاره ګرانه وي چه ستاسي د خبرو څخه زده کړه وکړي . په دې اساس تاسي بايد کوشش وکړئ چې د خپلو شاګردانو په سويه خبرې وکړئ .

که غواړئ چې د ليکنو او يا د ايګرامونو په واضح کولو کې درسره مرسته وشي ، نو کولی شئ چې د بصري موادو لکه چارټونو ، پوسترونو ، د تومتې تختو او د امکان په صورت کې د سلايډ پروجکټونو څخه کار واخلئ . دا ټول پورتني شيان د موضوع د ښه وضاحت په برخه کې مرسته کوي .

په دې هکله په څلورم فصل کې يو څه معلومات ورکړه شوي دي .

تقريباً ټول ښوونکي د خپل کار لپاره د تختې څخه کار اخلي . کله کله د درس په پای کې تخته د ليکنو او د ايګرامونو څخه په غير منظمه توګه ډکه ښکاري چې هيڅ شی پکې واضح نه وي . تاسي بايد د درس د پيل څخه د مخه د هغو شيانو په هکله تياری ونيسئ کوم چې په تخته ليکل کيږي . بيا د درس په دوران کې په تخته هغه مهم ټکي وليکئ ، چې د تدريسي موضوع جوړښت څرګندوي . دا په ياد ولرئ چې شاګردان هر وخت کلمات

په هماغه شکل لیکې څرنګه چې تاسې په تخته لیکلي وي . خپل ځانونه سم مطمئن کړئ او داسې لیکنه وکړئ چې د شاګردانو په نوټ کې هم سم او واضح ښکاره شي .

---

## لنډیز :

---

په دې ځان مطمئن کړئ چې هغه څه چې تاسې وايي شاګردان يې اوريدلی شي او هغه څه چې تاسې لیکئ ، هغوی يې لوستلی شي . همدارنګه ځان مطمئن کړئ چې شاګردان ستاسې په کلماتو پوهيږي او که نه .

---

## (۱ - ٦) خپل تدريس ګټور وګرځوئ .

---

## تمرین :

د دوه یا درې ثانيو لپاره لاندې ډايګرامونو ته وګورئ .

الف :



ب :



اوس کتاب بند کړئ او کوشش وکړئ چې د الف او ب ډايګرامونه رسم کړئ . کله چې مو دا کار خلاص کړ بيرته لوست پيل کړئ .

## دتمرین په هکله تبصره :

امکان لري تاسي د «ب» ډایګرام په اساني سره رسم کړي وي . علت ئې دادی چې هغه یوه طرح او شکل درلود د کوم نه چې مطلب اخستل کیده یعنی درې مربع ګانې د یو بل سره تړل شوي وې . د الف ډایګرام په یاد ساتل ډیر ګران و ، ځکه چې نه ئې کوم شکل درلود او نه معنی . خو په دواړو ډایګرامونو کی د کرښو شمیر یو شان و .

---

یو رتښتنی مثال د تدریس سره څه ارتباط ؟ ویلی شو هغه ډایګرام چې په یاد ساتل ئې اسان وي ( معنی ) لري او دا د هغو شکلونو سره شباهت لري چې تاسي لیدلي دي . که تاسي خپل تدریس ګټور او پرمعنی وګرځوی نو شاګردان به ئې په ډیره اسانی سره زده کړي .

دا اسانه خبره ده تر څو ویل شي چې تدریس باید پرمعنی وي ، خو تاسي په عمل کی څه کولی شی ؟ د لته ځنی پیشنهادونه دي چې :

الف : د تدریس د شروع نه مخکی د هغو شیانو په هکله یوڅه تشریحات ورکړي چې تاسي ئې ویل غواړي . د دې کار د عملی کولو لپاره تاسي کولی شی چې د موضوع مقاصد شاګردانو ته ووایئ . د دې لارې به شاګردان و پوهیږي چې هغوی څه باید زده کړي او په نتیجه کی هغوی د تدریس څخه په کافی اندازه استفاده وکړي .

ب ) کوشش وکړي چې د تدریس موضوع تر د شاګردانو د ژوند سره ارتباط ورکړي . کیدای شي چې ستاسي شاګردان مهمی او ګټوري تجربې ولري . نو کله چې تاسي د حفظ الصحې په هکله خبری کوی وګوری چې ستاسي شاګردان څومره پوهیږي . د هغی نه وروسته همدې موضوع ته پراختیا ورکړي او لازم معلومات وړاندي کړي . داسي فکر مه کړي چې شاګردان هیڅ نه پوهیږي . د مثال په ډول تاسي د اسهال د ناروغی په هکله خبری کوی . د شاګردانو څخه پوښتنه وکړي چې هغوی د اسهال ناروغه لیدلي او یا دا ناروغی پیژني . د دې کار په کولو سره به

شاګردان د اسهال په نارو غی ډیر ښه پوهیږی، چی دا به په کتاب کی شتون نه وي بلکه یوه حقیقی بڼه به غوره کړی . په دی کتاب کی کوښښ شوی دی چی تاسی لپاره ځینی نظر یٔ ګتوری او پر معنی وګرځوی تر څو تاسی د هغوی ځینو د تدریسی مشکلاتو په برخه کی کار واخلی .

ت : نوی الفاظ تشریح کړی . کله چی تاسی څه معلومات وړاندی کوی ، نو تاسی باید نوی کلمات او مفاهیم تشریح کړی . ځینی ښوونکی د دی لپاره چی ځان هوښیار وښئ نو ډیر اوږده او مغلق الفاظ استعمالوی . د دی کار نه باید ډډه وشی ، خو بیا هم تاسی باید ځینی نوی کلمات استعمال کړی . کله چی دا کار کوئ نو تاسی باید نوی الفاظ تعریف او واضح کړی او د معنی په ارتباط یٔ ډیر مثالونه ورکړی کله امکان لری د شاګردان لپاره داسی زمینه برابره کړی چی هغوی پخپله د غه الفاظ استعمال کړی . دا کار د مباحثی او یا د لیکلو په شکل کیدلی شی . په دی ترتیب به تاسی شاګردان د نوو کلماتو او مفاهیمو په معنی په ښه توګه وپوهیږی .

---

## د یو نوی نظر د تشریح کولو مثال :

د مثال په توګه غواړی چی د وینی د دوران مفهوم تشریح کړی . په دی جمله کی یوه نوی یا غیر معمولی کلمه لیدله کیږی چی هغه « دوران » دی . د دی کلمی په اوریدلو سره یو بل نوی فکر هم پیدا کیږی ( بنایٔ دا فکر نوی وی او یا به ځینی خلک پری پوهیږی ) چی هغه په وجود کی د وینی ګرځیدل دی . کله چی دا نظر تدریسوی نو تاسی باید دوران تعریف کړی او د نورو داسی شیانو په هکله فکر وکړی چی په هغه کی دوران وی . امکان لری شاګردان دا او بو د دوران په هکله فکر وکړی .

د دی نه وروسته شاګردان تشویق کړی چی دا مفهوم استعمال کړی . د مثال په توګه د هغوی نه پوښتنه وکړی چی د دوران اهمیت څه دی . امکان لری هغوی ووایٔ چی وینه د وجود د ټولو برخو ته بلی برخی ته شیان نقلوی . هغوی ممکن دا هم ووایٔ چی که د وجود یوه برخه ډیره غوڅ شی نو څه به پیښ شی . د دی لاری به تاسی شاګردان ډیر ژر د هغه مفهوم په

هکله پوهه تر لاسه کړی کوم چی (۳۰) کاله د مخه کشف شوی و.

---

ث : مثالونه ورکړئ:

کله چی تاسی د معالجی په هکله یو نوی نظر یا میتود تشریح کوی، نو د حقیقی صحنی مثالونه ورکړی. تاسی کولی شی د داسی تجربو په هکله خبری وکړی چی په نژدی وختونو کی موږ حاصلی کړی وی. همدا رنګه دا به ډیره ښه وی که د هغو ناروغانو په هکله چی شاګردانو په نژدی وخت کی لیدلی وی او یا د یو کلی لپاره داوبو د تهیه کولو په سیستم خبری وکړی.

د پاملرنی وړده چی په دی کتاب کی د نظریاتو د تشریح کولو لپاره د ډیرو مثالونو څخه کار اخستل شوی دی.

ج : تدریس تر د شاګردانو د راتلونکی کار سره ارتباط ورکړی. که شاګردان په دی وپوهیږی چی څنګه د معلوماتو څخه په خپل کار کی استفاده وکړی، نو د هغه مهارت به د هغوی لپاره ډیر ګټور وی. د مثال په ډول تاسی غواړی چی شاګردان باید د مایکرسکوب په استعمال پوه شی. ځینی شاګردان به د مایکرسکوب سره علاقه ولری، خو هغه شاګردان چی د مایکرسکوب سره علاقه نلری ښه زده کړه نشی کولی. که مایکرسکوب شاګردانو ته داسی تشریح شی چی دا به د هغوی د راتلونکی کار یوه برخه وی او د معمولو ناروغیو د تشخیص لپاره ترینه کار اخستل کیږی، نو بنائی هغوی د درس د زده کړی سره ډیره مینه پیدا کړی.

ح : د درس په پای کی د مهمو ټکو لنډه یادونه وکړئ - لکه په دی کتاب کی چی شوی.

---

لنډیز :

تاسی د شاګردانو سره په زده کړه کی هغه وخت مرسته کولی شی ترڅو ځان په دی مطمئن کړی چی هغه څه چی تاسی ئی تدریسوی د هغوی لپاره معنی او مفهوم ولری او کړنه.

دا کار په لاندی ترتیب ترسره کړی :

(الف) کوم شیان چې شاگردان باید زده کړي د مخه یې تشریح کړئ.
(ب) درس ته د شاگردانو شوق سره ارتباط ورکړئ.
(ت) نوي کلمات او نظریات تشریح کړئ.
(ث) د خپل مقصد د واضح کولو لپاره ډیر مثالونه ورکړئ.
(ج) خپل تدریس داسې وښئ چې د شاگردانو سره به په هغو کارونو کې مرسته وکړي د کوم لپاره چې هغوی روزل کیږي.
(چ) د تدریس مهم ټکي خلاصه کړئ.

---

(۱-۷) د ښه پوهې اطمینان حاصلول: د ښه پوهې د اطمینان حاصلولو څخه مقصد په دې باندې ځان مطمئن کول دي ترڅو شاگردان په دې پوهیږي چې په هر مرحله کې څه شی ته ضرورت دی. دا کار باید د هر یو درسي ساعت په پیل کې وشي.

کله چې تاسې یو موضوع تدریسوئ امکان لري چې شاگردان د پخواني درس د ځینې نظریاتو پوهیدلو ته ضرورت ولري. د مثال په توگه که تاسې د ماشومانو د ودې د چارت په هکله خبرې کوئ، نو شاگردان باید وپوهیږي چې گراف څه شی دی او په گراف باندې څنگه کار وکړي. امکان لري د انظري ځو موده د مخه تدریس شوي وي، خو کیدای شي چې شاگردانو هیر کړې وي او یا هیڅ پرې پوهیدلي نه وي. د دې نه مقصد دا شو چې د ماشومانو د ودې د چارت په هکله ښه پوهه تاسې حاصلیدلی.



«... کیدای شي چې شاگردانو هیر کړې وي او یا هیڅ پرې پوهیدلي نه وي ...»

د دې لپاره چې دغه مشکل موحل کړای وي ، نو تاسې باید د درس په
پیل کې دا معلومه کړئ چې ټول شاګردان په ضروري شیانو پوهیږي او که نه .
د شاګردانو څخه داسې پوښتنه مه کوئ چې " تاسې ټول په ګراف پوهیږئ ؟
که داسې پوښتنه وکړئ نو ډیر امکان لري ټول شاګردان ، ووایي چې «هو» موږ
پوهیږو ، ځکه هیڅوک دا نه مني چې هغه په څه نه پوهیږي . د پورتنۍ پوښتنې
پرځای تاسې یو لنډ امتحان اخستلی شئ . هغه داسې چې په تخته باندې
یو ګراف رسم کړئ او شاګردانو ته ووایئ چې په ګراف کې د ښودل
شوو ټکو مفهوم ولیکي .

تاسې باید د درسي ساعت په پای او یا دوران کې دا معلومه کړئ چې
شاګردانو څومره زده کړه کړې ده . بیا هم د مخکې په څیر داسې پوښتنه
مه کوئ چې " تاسې پوهیږئ ؟ " ، بلکه شاګردان د مهارتونو د اجراکولو
او یا حقایقو د بیانولو لپاره امتحان کړئ .

دا طریقه ډیره معموله ښکاري . ډیر ښوونکي فکر کوي چې هغوی د ښه
پوهې د اطمینان حاصلولو د طریقې څخه کار اخلي خو په حقیقت کې تاسې د شاګردانو
سره خبرې وکړئ ، او د هغوی پوهه ځانته معلومه کړئ ، نو حیران به شئ چې هغوی د
مخکینی درسونو څخه ډیر لږ شیان په یاد لري .

---

لنډیز :

د درس په پیل کې باید دا معلومه کړئ چې ټول شاګردان د نوي درس
د پوهیدلو لپاره ، مناسبه پوهه لري او که نه . همدارنګه د درس په پای کې وګورئ چې شاګردانو
ټول نوي مهارتونه یا حقایق زده کړي او که نه .

---

(۱-۸) فردي اختلافات په نظر کې نیول :

امکان لري اکثره ښوونکي د دې
سره موافق وي چې مختلف شاګردان د مختلفو لارو زده کړه کوي . ځینې

شاګردان ډیر ذکي وي، خو ځني شاګردانو ذکاوت کم وي. ځني شاګردان امکان لري په نظري زده کړه کې ډیر سند وي، خو په عملي کارکې خاص لیاقت ولري. برخلاف ځني شاګردان د کتاب څخه زده کړه کولی شي او ځني خواري چې د ښوونکي لیکچر ته غوږ ونیسي. ځني هم د عملي تجاربو له لارې ښه زده کړه کولی شي.



«اکثراً، په ښوونځیو کې ټولو شاګردانو ته یو شان کتل کیږي...»

خو اکثراً په ښوونځیو کې ټولو شاګردانو ته یو شان کتل کیږي هلته ټول شاګردان یو ډول درسي ساعتونو ته ورځي، یو ډول لیکچر ته غوږ نیسي او وروسته یو ډول عملي کارونه کوي.

دا ډیره اسانه طریقه ده چې ټولو شاګردانو ته په یو شان وکتل شي. په دې صورت کې د شاګردانو کنټرولول هم اسانه وي، ځکه ترتیب شوي تقسیم اوقات د شاګردانو لپاره تاکل شوي وختونه لري. خو، ایا دغه کار د ډیرې مؤثرې زده کړې سبب ګرځیدلی شي؟ ایا دا کار شاګردان د خپلې زده کړې مسئولیتونو ته تیار وي؟ دا په یاد ولرئ، کله چې دغه شاګردان ښوونځی خلاص کړي، نو هغوی باید کار وکړي، او هم پخپله زده کړه وکړي.

په دې برخه کې ښوونکي څه باید وکړي ترڅو شاګردانو ته په هغو مختلفو طریقو د کار کولو زمینه برابره کړي کوم چې د هر یو شاګرد لپاره ډیرې

ګټوري وي؟ دلته ځيني پېشنهادونه دي چې په ډېرو ګټورو سبونځيو کې ترينه کار اخستل کېداى شي.

الف: په دې بايد اطمينان حاصل شي چې شاګردانو ته ښکېله زده کړې لپاره مناسب وخت ورکړ شوى. ددې کار لپاره بايد شاګردانو ته د ورځې، يا په بل مناسب وخت کې داسې زمينه برابره شي ترڅو هغوى ښکېله مطالعه وکړي. دا کار د سبونکي له خوا د کارونو په ورکولو او يا تمرين له لارې سر ته کېدلى شي.

ب: د مختلفو درسي روشونو څخه کار واخلئ. ځينې شاګردان ممکن د کتاب څخه ښه زده کړه وکړي. ځينې ممکن د شاګردانو ترمنځ د مناقشې له لارې ښه زده کړه وکړي او ځينې هم شايد (د امکان په صورت کې) د فلم د سبونو له لارې ښه زده کړه وکړي.

داهر وخت ممکنه نه ده چې د درسي روشونه د انتخاب لپاره خوښه ورکړاى شي، خو دا ممکنه ده چې استادان د ځينې هغو مختلفو روشونو څخه کار واخلي کوم چې د ډېرو شاګردانو د زده کړې د ضرورياتو لپاره ګټور وي.

ت: د پروژې کارونو څخه ډېره استفاده وکړئ. ددې کار لپاره تاسې شاګردانو ته يوه لويه وظيفه وسپارئ. د مثال په توګه ورته ووايئ ترڅو دا معلوم کړي چې د يو کمپ د خلکو په فکر، هغوى د کومو ډېرو روغتيايي ستونځو سره مخامخ دي. دغه ډول کارونه د شاګردانو د خپلې زده کړې لپاره ډېره مناسبه زمينه برابروي او ضمناً دا به لکچر لپاره هم يو بدلون وي.

ث: د شاګردانو سره په بېلا بېله توګه خبرې وکړئ. که چېرې د شاګردانو سره خبرې وکړئ نو تاسې به ګورئ چې ځينې شاګردان به د يو نظر په هکله مغشوش ښکاري، خو د ځينو لپاره به هماغه نظر اسان وي. ددې نه وروسته تاسې کولى شئ چې دغه نوى نظر ښکېله تشريح کړئ او يا هم شاګرد ته ووايئ چې د خپلې زده کړې لپاره د هغې په هکله څرګنده معلومات ترلاسه کړي.

# لمړی برخه

# تاسی دخپلو شاګردانو سره په زده کړه کی څنګه مرسته کولی شئ

## لمړی فصل ؛ د درسی روشونو معرفی ؛

په دی برخه کی داسی لارښوونی کیږی چه تاسی خپلو شاګردانو ته هغه څه چی هغوی ئې زده کړی ته اړتیا لری څنګه تدریسولی شئ ؟ شاګردان پوهیږی په هغه صورت کی ښه روزل کیدلی شی چه ښوونکی دښو درسی روشونو په استفادی سره لازم مهارتونه تدریس کړی .

دا ډیره مهمه ده چی شاګردان نه پوهیږی دا چه دیوی موضوع په هکله پوهه تر لاسه کړی ، بلکه عملاً هم وروزل شی یعنی څرنګه عملی کارونه وکړی . په دی برخه کی ډیر تأکید دشاګردانو دغوږنیولو پرځای دهغوی په عملی زده کړه شوی دی . دا ټوله برخه په یو زوړ چینائی متل کی خلاصه کیدلی شی چه وائي ؛

( اوریدل - هیرول ، لیدل - یادول او کول پوهیدل دي )

د دی برخی مقصد دا دی ترڅو تاسی سره د کورس د هری برخی لپاره دمناسب درسی روش په انتخاب کی مرسته او هم دزړه درسی روشونو دښه او موثر استعمال په برخه کی مشوره درکړی .

دا برخه داسی ترتیب شوی ده ؛ لومړی فصل ، دعمومی مسایلو لکه دشاګردانو دتشویق ، او دمضامینو د ارتباط په هکله عمومی لارښوونی کوي .

ددی برخی پاتی دری فصلونه هغه خاص روشونه تشریح کوی چه د طرز العملونو ، مهارتونو ، او پوهی په تدریس کی تر ډیره کار اخستل کیږی .

## ۱-۱ - دښوونکی رول ؛

څرنګه ښوونکی دشاګردانو سره په زده کړه کی مرسته کولی شی ؟ پخوانی طریقه داسی وه چی څومره چه ښوونکي کولای شو شاګردانو ته به ئې خبری کولی او شاګردانو ته به ئې معلومات ورکول ، مګر اوس ښوونکی دیو مرسته کوونکی په توګه کار کوی

ج : دخپل ځاني لارښوونې د روښنځه کار واخلئ. که دا کار د مواد و د نښتوالی او یا د مناسبو پروګرامونو له امله ممکن نه وي نو تاسې د شاګردانو سره د لیکلو نو توبو له لارې مرسته کولی شی. دا نو تونه شاګردانو ته د هغو کتابونو د لوستلو لپاره لارښوونې کوي کوم چې د روغتیائي کارکونکو لپاره لیکل شوي دي. برسیره پر دې دا نو تونه شاګردانو ته د مهارتونو په زده کولو او عملي کارونو کې هم لارښونه کوي.

---

## لنډیز :

دا مو هیر وي چې ستاسې شاګردان مختلف خلک دي او د زده کړې بیلا بیلې لارې او معیارونه لري. د هغوی لیاقتونه، تجربې او علاقې هم سره توپیر لري. هڅه وکړئ چې د شاګردانو خصوصیات پیدا او وروسته له دې نه خپل تدریس داسې ترتیب کړئ ترڅو د امکان په صورت کې هر یو شاګرد د خپل خصوصیت په اساس زده کړه وشي کولی.

---

## (۱-۹) پاملرنه :

شاګردانو ته د ښوونکي پاملرنه اکثراً هغوی ډیر کار ته تشویقوي. دیادونې وړ ده چې یوازې د ښوونکو پاملرنه کافی نه ده، بلکه شاګردان هم باید وپوهیږي چې ښوونکی هغوی ته پاملرنه کوي.

دا کار باید داسې ونشی چې یو ښوونکی د نورو ښوونکو په نسبت ډیرې نمبرې ورکړي او یا خراب معیار، کار او سلوک ته ښه ووائي. دا کار په حقیقت کې بد اثر لري. تاسې باید دا ونه ووائی چې « زه پاملرنه کوم . . . » . یوازې د دې خبرې ویل شاګردان دا ورن دې مرسته لپاره کار ته نشي هڅولی. د دې پر ځای باید د یو ښوونکي په توګه ستاسې سلوک او رویه داسې وي ترڅو شاګردانو ته وښئ چې تاسې هغوی ته پاملرنه کوئ.

---

## تمرین :

د یو ښوونکي په هکله لاندنیو جملو ته وګوری او وروسته تصمیم ونیسی

چې کوم یو جمله په ستاسی په نظر تاسو لپاره مناسبه وی :

۱ - ځوک چې پاکی او په ترتیب جامې اغوندی .
۲ - ځوک چې درسی ساعتونو ته په تاکلی وخت راځی .
۳ - ځوک چې د تدریس لپاره بشپړ تیاری نیسی .
۴ - ځوک چې د درسی موضوع په هکله د نوو او تخنیکی الفاظو په استعمالو سره ځان ډیر عالم او پوه ښئ .
۵ - ځوک چې ځان ډیر مهم او مصروف ښئ او د درسی ساعت څخه د زړو تلو په فکر کی وی، تر څو خپل شخصی کارونه اجراء کړی .
۶ - ځوک چې هیڅ نه خاندی او نه توکی کوی ځکه د هغه په نظر زده کړه یو جدی کار دی .
۷ - ځوک چې هر وخت د شاگردانو کار ته سپنه وائی کر څه هم خراب وی .
۸ - ځوک چې د شاگردانو د شخصی هیلو او علاقو د معلوملو لپاره د هغوی سره خبری کوی .
۹ - ځوک چې د درس د ښه والی لپاره د شاگردانو نظریات غواړی .
۱۰ - ځوک چې د درس په هکله د شاگردانو نظریاتو ته اهمیت نه ورکوی .
۱۱ - ځوک چې په شاگردانو د لوړ معیار کارونه تر سره کوی .

د تمرین په هکله تبصره :

په پورتنی تمرین کی صحیح ځوابونه تر یوی اندازی څرگند دی ، خو یوازی شلورم ، اووم او اتم ، جمله لږ څه تشریحات غواړی .
شلورم جمله د ټولو څخه خرابه طریقه څرگندوی، د کومی نه چې ځینی ښوونکی کار اخلی . ښوونکی باید د هغو تخنیکی الفاظو د استعمال نه ډډه وکړی کوم چې د ښوونکی په فکر هغه ډیر عالم او پوه ښئ . ښوونکی باید فخر وکړی چې څرنگه نظریات په ساده الفاظو کی تشریح کړی، تر څو هر ځوک پری په اسانی سره و پوهیږی.
اووم جمله د ځینی هغو خاصو ښوونکو طریقه ده، کوم چې غواړی خپل شاگردان

تشویق کړي. دخراب کار دستایلو مفکوره سمه نه ده . تاسي باید دستایلو ورته تکي وسنائئ ، او ددې په څنګ ظعیفي نقطې هم ورته په ګوته کړئ او په سمه معیار ئې ټینګار وکړي .

اتمه جمله څلکه ګرانه ښکاري چې ښوونکي دومره وخت نلري ترڅو دټولو شاګردانو سره په جلاجلا توګه خبرې وکړي. دامکان ترحده کوشش وکړئ چې دخپلو خبرو برسیره خپلو شاګردانوته هم نمونه ونسیې. کله چې تاسې خبرې کوي نوهڅه وکړئ ترڅو داسې مسایل مطرح کړئ چې تاسي اوستاسي شاګردان ورسره ګډو مینه ولري. کیدای شي دوا ړه خواوې دشاګردانو یوکلي وال وپیژني او یا تاسي اوشاګردان د سپورت سره مینه ولري. دښوونکي لپاره دپاملرنې وړ تکي دا دې چې هغه باید ځان د شاګردانو سره مساوي اوپوشان وګڼي .

---

---

لنډیز :

که شاګردانو سره دا فکر وي چې ښوونکي هڅوي ترپاملرنه کوي ، نو دا بر دشاګردانو دزده کړې لپاره یو بل اضافي دلیل وي .

---

## (۱ - ۱۰) هڅول یا موتیویشن :

دهڅولو یادونه ددې لپاره ضروري ده چې دا د مؤثر تدریس لپاره یواساسي عامل ګڼل کیږي. دښوونکي لپاره ضروري ده چې شاګردان زده کړې ته وهڅوي .

دا کار ترېوکه اندازې رښتیا دی ، خو دیره مرسته نشي کولی. څرنګه ښوونکي شاګردان زده کړې ته هڅولی شي ؟ ددې سوال دځواب لپاره ښوونکي دهغه نظریاتو څخه کار اخستلی شي چې په (۱ - ۲ ) ، (۱ - ۹) برخوکې تشریح شوي دي. دغه نظریات تاسي سره د کورسونو په زده پورې کولو،

اسانه زده کړي، یا د شاګردانو د کارونو په ارتباط ور کولو کې مرسته کولی شي. برعلاوه دا نظریات د شاګردانو سره دا احساس هم پیدا کوي چې تاسي د هغوی پرپالیتوب سره علاقه لري. که د غه ټول شیان په نظر کې ونیول شي، نو دابه د شاګردانو په تشویق کې ډیره مرسته وکړي.

---

(۱ - ۱۱) نتیجه ګیري:

ځیني خلک فکر کوي چې د تدریس علم یو طبیعي استعداد دی چې ځیني ښوونکو سره د ورکتوب څخه وي، خو ځیني وایي چې دا علم ځانګړي اصول او قوانین لري او په اسانه توګه زده کېدلی شي.

د کتاب په دې برخه کې هغه شوي ده تر څو وښیو چې د تدریس لپاره ځیني عمومي قوانین شته. که تاسي په دې قوانینو عمل وکړئ، ستاسي تدریس به ښه شي، خو که تاسي د دې قوانینو په خلاف عمل وکړئ، نو ستاسي تدریس به خراب وي او شاګردان به زده کړه ونشي کولی.

یوازې قوانین کافي نه دي، بلکه ښوونکي باید د هغو لارو په هکله هم فکر وکړي کوم چې د تدریس موضوع د شاګردانو لپاره پر معنی او مؤثره ګرځوي. تاسي باید د هغو فعالیتونو په هکله هم فکر وکړئ کوم چې د شاګردانو په زده کړه کې به مرسته کولی شي. همدا رنګه تاسي باید دا تکلیف په ځان ومنئ تر څو شاګردانو ته فیډبیک ورکړئ، او وښیئ چې تاسي د هغوی د زده کړې او پرپالیتوب سره علاقه لري.

---

لنډیز:

د دې لپاره چې د شاګردانو سره مو په زده کړه کې مرسته کړې وي نو باید لاندیني شیان په نظر کې ونیسي:



۱ - زده کړه فعاله کړئ - یعنی د شاګردانو څخه پوښتنې وکړئ، مسایل مطرح کړئ، او پروژې ترتیب کړئ.
۲ - فیډبیک ورکړئ - هر یو شاګرد ته د هغه د کار د څرنګوالي، او د کار د ښه کېدلو په هکله تشریحات ورکړئ.
۳ - خپل تدریس واضح کړئ - داسې خبرې وکړئ چې ټول ئې واوري، لیکنې واضح ولیکئ، د بصري مواد و څخه کار واخلئ او په ساده ژبه خبرې وکړئ.
٤ - خپل تدریس مؤثر او ګټور وګرځوئ - شاګردانو ته د کار و نو د ښه اجراء کولو په هکله تشریحات ورکړئ.
٥ - د ښه پوهې اطمینان حاصل کړئ - د هر درسي ساعت نه مخکې او وروسته وګورئ چې ټول شاګردان په ضروري وظایفو پوهېدلي او ضروري مهارتونه اجرا کولی شي.
٦ - فردي اختلافات په نظر کې ونیسئ - پرېږدئ چې شاګردان په خپل سرعت (خصوصیت) زده کړه وکړي. هغوته اضافي وخت ورکړئ، او تاسې د مختلفو درسي روشونو څخه کار واخلئ.
۷ - داسې وښئ چې تاسې د شاګردانو زده کړې ته پاملرنه کوئ، شاګردانو لپاره لوړ معیار وټاکئ او بیا د هر شاګرد پوهه معلومه کړئ.

---

## دویم فصل: د طرز العمل تدریس:

طرز العمل څه شی دی؟ په روغتیائي مرکز کې د یو روغتیائي سویه وایز په هکله فکر وکړئ. امکان لري هغه د تعقیم په روښونو او لازمه مهارتونو و پوهیږي خو کېدای هغه ځان ته کار کوي نو کېدای شي چې د ځنې شیانو په کولو کې لنډو الې راولي او یا ئې مکمل نکړي. د کوم سلوک څخه چې هغه کار اخلي، دا په حقیقت کې د هغه د طرز العمل پوهې ترلې دی. نو ویلی شو چې د یو خاص سلوک تمایل ته طرز العمل وائي.

## (۲-۱) ایا طرز العملونه مهم دی ؟

داهر وخت ویل شوي دي چې د ترتیننګ پر دوران کی زده کړای شوی طرز العملونه ، د ترینګ مهم برخه ده . همدا رنګه ځنی خلک وائی چې طرز العملونه نشی تبدیلیدلی . نو بیا حقیقت څه دی؟

یقیناً د ترینګ پر دوران کی ځینی طرز العملونه جوړېږی او یا تغییر موږی . پورتنی خبره هر هغه چا ته څرګنده ده چې د شاګردانو سره ئې کار کړی وی او د څه مودی لپاره ئې دهغوی پر مختګ لیدلی وی . اوس دهغو شاګردانو طرز العملونه چې د اوږدی مودی ترینګ ئې سرته رسولی وی، دهغو شاګردانو د طرز العملونو سره مقایسه کړی چې اوس ئې ترینګ شروع کړی وی. تفاوت ډهر وخت څرګند وی . دلته سوال پیدا کیږی چې دا تغییر ولی راغی ؟ ایا دا تغییر د کورس له خوا راغی ؟ ښوونکي کولی شی چې د طرز العملونو تغیرات کنترول کړی . د ښوونکو لپاره یو مشکل دا دی چې طرز العملونه په اسانتوګه اندازه کیدلی نشی. کر تا سی یو نا روغ ته د پیچکاری کولو په هکله درس ورکوی،نو د درس پر پای کی اسانه ده تر څو وپوهیږی چې ایا شاګردانو دغه مهارت زده کړی او کړنه . له بلی خوانه تاسی کولی شی چې د ناروغانو په هکله د شاګردانو طرز العملونو ته تغیر ورکړی، او ورته ووائی چې باید د ناروغانو نظریاتو ته هم احترام وکړی . خو بیا هم ددی تشریحاتو څخه وروسته دا ډیره ګرانه ده ترڅو معلومه کړی چې د شاګردانو په طرز العملونو کی بدلون راغلی او کړنه .



«طرز العملونه لږ څه مبهم شیان دی»

بل مشکل دا دی چې طرز العملونه لږ څه مبهم شیان دی. د هغوی تعریف یا تشریح گران کار دی. له دی کبله دیر لږ سنبوونکي ښوولای، ترڅو د طرز العملونو هغه مکمل لست ترتیب کړی کوم چې باید د هغوی شاگردان ولري.

د دی ټولو مشکلاتو سربیره، طرز العملونه دیر مهم دی او سنبوونکی باید دیره کوشش وکړي چې شاگردانو ته یې تدریس کړي، ترڅو شاگردان په صحیح طرز العملونو پوه شي.

دا موضوع په هغو ځایونو کی مهمه ده چې شاگرد د ټرینینگ څخه وروسته ځانگړی کار کوي، او یا یې دوامدار سوپرویژن نه کیږي. په دی صورت کی دیر امکان لري چې یو شاگرد د تنبلی څخه کار واخلي او په جدی توگه کار ونکړي چې په نتیجه کی به د روغتیایي ساتنی معیار ټیټ شي. هغه فکتور یا عامل چې د روغتیایي ساتنی د معیار د ټیټوالی مخنیوی کوي، هغه د روغتیایي کارکونکی طرز العمل دی.

## (۲-۲) د طرز العملونو تدریس.

د طرز العملونو د تدریس لپاره خاص او کرښې شوي روش نه شته. سنبوونکی باید په دی خبر اوسي چې د شاگردانو تجربي ممکن د هغوی طرز العملونو ته تغیر ورکړي. خو یوازې یوه تجربه نشي کولی چې په ټولو شاگردانو یو ډول تاثیر ولري.

لاندی پنځه عمومي روشونه ورکړ شوي، د کوم څخه چې سنبونکي کار کار اخستلی شي:

۱- د معلوماتو برابرول.

۲- د ماډلونو یا مثالونو برابرول.

۳- د مستقیمو تجربو برابرول.

٤- د مناقشی لپاره زمینه برابرول.

٥- د رول پلی تمرینونه.

امکان لری تاسی د پورتنیو روشونو ځخه کار واخلی، خو دا مه هیروی چی د شاگردانو طرز العملونه سبا ته د ځینو پیښو د پیښیدو له امله تغییر وکړی، چی تاسی بر ئې نشی کنترولوی. د مثال په توگه، شاگردان به غواړی چی کتابونه ولولی، د سبونځی نه د باندی د خلکو سره خبری وکړی، خپلو کورنیو سره گوری او داسی نور. امکان لری شاگردان د ترینگ د پیل کیدلونه د مخه خه طرز العملونه ولری، خو تاسی د پورتنیو طرز العملونو سربیره، باید دیو مؤثر طرز العمل مثال وړاندی کړی.

له دی کبله دا ډیره مهمه ده چه ستاسی نفوذ باید د امکان تر حده قوی او سنه هم وی.

لاندینی برخی هر روش په مفصله توگه تشریح کوی.

(۲-۳) د معلوماتو له لاری د طرز العملونو جوړول :

معلومات هر وخت د طرز العملونو د بدلونو لپاره کافی نه دی. خو مرسته کولی شی. د مثال په توگه د سگرټو د څکولو په هکله حقایق او د سرطان او زړه د ناروغی په باره کی خطرونه ئې په ډیرو هیوادونو کی خلکو ته معلوم دی. د ځینی خلکو لپاره دغه معلومات کافی دی تر څو د سگرټو د څکولو طرز العمل ته تغیر ورکړی او د سگرټو څکول بند کړی، خو د ځینی نورو لپاره دا معلومات نه دی کافی.

معلومات د مختلفو لارو ورکول کیدلی شی چی منا قشه ئې یو څرگند روش دی.

د معلوماتو لپاره تصویرونه هم ډیر مؤثر دی ځکه هغوی د حقیقی حالاتو څرگندونه کوی.

---

تمرین :

د شاگردانو د تدریس لپاره د هغو معلوماتو لست ترتیب کړی کوم چی د تعقیم د روشونو اهمیت ته شاگردان متوجه کوی. تاسی به څنگه دغه حقایقو ته، د

سامان د تعقیم او لاسونو د پرمینځلو بشپړ طرز العمل سره ارتباط ورکوي .

یو بل مثال : تاسي په دې برخه کې کوم معلومات برابر ولې شي ترڅو یو پلار دې ته تشویق کړي چې خپل ماشومان واکسین کړي .

## د تمرین په هکله تبصره :

د پورتني تمرین په هکله امکان لري تاسي لاندیني تکي په نظر کې نیولي وي :

- په تولسمه پیړۍ کې په روغتونونو کې د تعقیم د میتودونو د عملي کولو پر اساس د مړینې په برخه کې حیرانونکې کموالی راغلی .
- تولسنی روغتیایي کارکونکو ته ضرورت .
- د ناروغیو د سرایت لارې .

دغه حقایق ښیي چې ولې د تعقیم میتودونه ډیر مهم دي . ځینې وخت د لږ منطقي او ډیرو احساساتي حقایقو وړاندې کول ښه تأثیر کوي . د مثال په توګه تاسي دیوې داسي تجربې په هکله معلومات ورکولی شي ، که په هغې کې د تعقیم روښونو څخه کار وانه خستل شي نو څه به پیښ شي . دغه مثال امکان لري چې خاص منطقي اهمیت ونلري ، خوکه تاسي همدا مثال د داسي یوې ښکاره او احساساتي کیسي په څیر وړاندې کړي نو ښایي ډیر تأثیر وکړي .

---

## (۲ - ۴) د مثالونو یا ماډلونو له لارې د طرز العملونو جوړول :

اکثره اعلانات د دې لپاره دي چې د خلکو طرز العملونو ته تغیر ورکړي . په دې اعلاناتو کې ځینې ځوانان او ښکلې جوړې د ځینې مصنوعاتو په استعمالولو کې ښودل کیږي . دلته د اعلان کونکی مقصد دا دی ترڅو په اعلان کې د ښودل شوې شي لپاره یو موډل یا یو مثال رابرچه یا خلک د هغې څخه پیروي او هغه تعقیب کړي . په عمومي توګه دا روش چه ډیر مؤثر دي .

دا خبره د تدریس سره څه ارتباط لري؟ دلته باید وویل شي چې ډېرو شاګردانو لپاره ښځیله سبوونکي یو ښه موډل دی او شاګردان اکثراً د سبوونکي رویه تعقیبوي. که ښوونکي د مریض سره بد سلوک او یا لازمه سامان په غلط توګه استعمال کړي، نو ښکاره خبره ده چې شاګردان به د ښوونکي د همدې طرز العمل څخه کار واخلي.

خو برخلاف، که ښوونکي د خلکو سره د ښه سلوک څخه کار واخلي، نو شاګردان حتماً د هماغه سلوک څخه کار اخلي. نو لدې امله دا ډېره ضروري ده چې هر هغه څه چې تاسي کوي باید د شاګردانو لپاره یو ښه مثال وګرځي.

دا ښکاره خبره ده چې ستاسي شاګردان د نورو خلکو سره هم ګوري چې دا هم تاثیر لري. نور روغتیائي پرسونل به هم د شاګردانو لپاره ماډلونه جوړوي. دلته باید ښوونکي وګوري چې برابر شوي مثالونه د امکان ترحده د شاګردانو لپاره ښه او مؤثر وي.

---

## (۲ - ۵) د تجاروبو له لاري د طرز العملونو جوړول:

د شاګردانو طرز العملونه

د هغو تجربو په اساس جوړیږي کومې چې هغوي د ټرېننګ په موده کي حاصلوي. هغوي امکان لري داسي زخم وګوري چې معالجه ئې نه شوي او میکروبي شوي دي. دداسي مستقیمي تجربي لیدل به د شاګرد په طرز العمل، په کتاب کي د مکروبي یا مصنوعي زخم د زر معالجي د حقایقو په نسبت ډېر تاثیر ولري.

سبوونکي باید د امکان ترحده مستقیمي تجربي برابري کړي. د مثال په توګه ډېر صحي کارکونکي په ټولنه کي د ښه تغذیې په هکله د معلوماتو ورکولو مسؤلیت په غاړه لري. په ځيني ښوونځیو کي شاګردان هغه سبزي کري چې هغوي ئې خوري، او د حیواناتو څارنه هم ښځیله کوي. دغه تجربه په خپله د کارونو د کولو په برخه کي د شاګردانو سره د مثبت طرز العمل په پیدا کولو کي مرسته کوي. په هغو ښوونځیو کي چې د کروندي کارونه کیږي، د ښوونکو لپاره په کرونده او د بوټو لپاره د کندوانو

او شاگردانو لپاره به داسې تجربې برابر وي چه هغوی په صحي مرکزونو کې کار وکړای
شي. هغه ممکن شاگردانو ته مشوره ورکړي چه د یو کتاب
څو پاڼې ولولي او یا ممکن د یو ګروپ شاگردانو مناقشې لپاره ځنې پوښتنې
هم ولیکي. په دې ټولو طریقو سره ښوونکی په زده کړه کې مرسته کوي.

ځنې ښوونکي فکر کوي چې باید ټولې خبرې هغوی پخپله وکړي او هم داسې
احساس کوي چه دوی په واقیعي توګه تدریس نه کوي بلکه شاگردانو ته نوي معلومات ورکوي،
خو دا طریقه کاملاً غلط ده.

که چیرې یو ښوونکی لیکچر ورکوي او شاگردان ترې هیڅ زده کړه
نشي کولای، نو دا ښوونکی خبرې کوي - نه تدریس -

راتلونکي فصلونه په ډېر تفصیل سره هغه مختلفې لارې تشریح کوي د کومو
په واسطه چې تاسې د شاگردانو سره په زده کړه کې مرسته کولی شئ. تاسې ممکن
د ځنې روشونو همدا اوس هم کار اخلئ او شاید احساس وکړئ چې ځنې دغه
روشونه به د شاگردانو لپاره ګټور نه وي. خو د دې ټولو تشریح شوو
روشونو څخه د ښوونکو له خوا کار اخستل شوی دی. که یو نظریه په خپل
اصلي شکل نشي استعمالیدلی په هغه صورت کې تاسې کولی شئ چه څه ناڅه
تغیرات پکې راولئ او د ځان لپاره ئې ګټور وګرځوئ.

په یاد ولرئ چه هر وخت تغیر راوستل ګران وي. د ټولو نه
اسانه طریقه دا ده چې د معمولو روشونو څخه په تکراري توګه کار واخلئ.

کله چه تاسې د یو درس پلان جوړ کړئ نو بیا د درسي پلان تاسې په راتلونکي کلونو کې
په لږ کوشش سره د همدې درسونو تدریس کولی شئ. که تاسې هیله لرئ
چې نوي نظریات عملي کړئ، نو د دې لپاره باید ډېر کار او زحمت وباسئ
ترڅو ئې ګټور ثابت کړئ. د نوو نظریاتو د تدریس له امله ځنې
شاگردان د تشویش سره مخامخ کیږي. خو د هغوی لپاره اسانه کار دا دی
ترڅو هغوی کېنول شي او د تدریس موضوع سره ئې علاقه پیدا کړای
شي. د فعاله زده کړې د ځنې ډولونو استعمال به د هغوی لپاره ګران وي، نو تاسې
باید لمړی د خپل کار طریقه شاگردانو ته تشریح کړئ او د نوو درسي

په وهلو کې برخه اخستل ددې لپاره اهمیت لري ترڅو شاګردان وپوهیږي چې دداسې کارونو کول بد نه دي او د چا حیثیت ته ضرر نه رسوي .
ځنې نورې مثبتې تجربې هم برابریدلی شي . شاګردان باید په یوځلي کې د پاکو او بوګنيو هم وځیږي . هغوي باید دا هم وګوري چې څرنګه سنه تغذیه د سنه ژوند سبب ګرځیدلی شي .
یوه پوښتنه : ایا ته فکر کوې چې شاګردان باید د کورس په دوران کې د خپل ځان لپاره پخپله د ډوډۍ پخولو تجربه ولري او که د هغوي لپاره بل څوک ډوډۍ تیاره کړي ؟ په پورتنیو دواړه حالاتو کې تاسې د کوم طرزالعملونو توقع لرئ ؟

---

## تمرین :

داسې درې تجربې ولیکئ چې ستاسې په فکر شاګردان ئې باید ولرے ، کومې چې دهغوي سره د ناروغانو په هکله د سنه طرزالعملونو په پیدا کولو کې مرسته وکړي .

## د تمرین په هکله تبصره :

امکان لري تاسې لاندیني نظریات لیکلي وي :

- د داسې یو تجربه کار روغتیايي کارکوونکي سره کار کول ، کوم چې د ناروغانو په هکله سنه طرزالعملونه لري .
- د ناروغانو سره د روغتیائي تشو یشونو په هکله خبرې کول .
- د داسې معیوبو ناروغانو سره کتنه چې دهغوي د ناروغۍ مخنیوي کیدلی شي .

نوټ :

د شاګردانو سره د دغه راز تجربو په هکله خبرې کول یو سنه کار دی ، ځکه ددې لارې تاسې هغه طرزالعملونه معلومولی شي کوم چې غواړې چه شاګردان ئې باید زده کړي .

---

## (۲-٦) دمناقشي لرلارې د طرزالعملونو جوړول :

د وړو گروپونو په شکل کې مناقشه د طرزالعملونو په جوړولو کې په عمومي توگه گټوره بلل شوې ده . د مناقشي اهميت په دې کې دی چې د مختلفو ذکر شوو دړي روشونو په مؤثریت کې نوره هم مرسته کوي . د مثال په توگه دا به د شاگردانو لپاره ډېره گټوره وي که په هغو تجربو ورسره خبرې وشي کومې چې د ناروغانو په هکله لري . په مناقشه کې شاگردان خپلې تجربې وائي او امکان لري چې د يو شاگرد تجربه د گروپ په ټولو غړو تاثير وکړي .



"دمناقشي لرلارې د طرزالعملونو جوړول"

دمناقشي يو بل مهم خصوصيت دا دی چې د دې لارې د شاگردانو فردي طرزالعملونه تغير مومي . د غه مرحله چې شاگردان خپل نظريات وړاندې کوي او د نورو شاگردانو عکس العمل گوري ، د طرزالعملونو د تغير يوه مؤثره لار کيدلی شي . د مناقشي لپاره مناسب کار دادی چې بايد د گروپ شمير لږ وي، تر څو هر يو شاگرد د خپلو نظرياتو د ويلو لپاره وخت ولري . د دې لپاره چې دا ميتود مؤثر ثابت شي ، اووه يا اته کسيزه گروپ به ډير مناسب وي، خو د يو گروپ اخري حد بايد د پنځلسو تنو څخه زيات نه وي . د پاملرنې وړ ده چې يوازې د ښوونکي خبرې ډيرې مهمې نه دي، بلکه په دې برخه کې د بيلابيلو شاگردانو نظريات ډير تأثير لري . د مناقشې په گروپونو کې بايد ښوونکي ډيرې لږې خبرې وکړي . په مناقشو کې ښوونکی کولی شي

چې خاموشه شاګردان د نظریاتو ویلو ته تشویق کړي او ډیر غږیدونکي شاګردان د ډیرو خبرو څخه منع کړي. ښوونکي په ځینې استثنائي حالاتو کې خپل نظر ویلی شي او یا هم په مناقشه کې فعاله برخه اخستلی شي.

په ځینې وختونو کې چې د شاګردانو شمیر زیات وي نو امکان نه لري چې د هر یو ګروپ لپاره یو ښوونکي وټاکل شي. په دې وخت کې یوا ځنې لار دا ده چې شاګردان بې له ښوونکي څخه، سره مناقشه وکړي. دا کار د امکان څخه لري نه دی، ځکه د ښوونکي رول دا دی چې د شاګردانو لپاره د مناقشې زمینه برابره کړي. نو په دې برخه کې تاسي کولی شي د شاګردانو د مناقشې لپاره لیکلي لارښوونې ترتیب کړي. د مثال په توګه تاسي د مناقشې د موضوع په هکله د پوښتنو یو لست ترتیب، او یو شاګرد ته وائې چې ټول صنف ته د مناقشې د موضوع په هکله راپور ورکړي.

## د مناقشې لپاره د پوښتنو مثال؛

داسې فکر وکړي چې تاسي مختلفو کلیو ته لیږل شوي یاستي، تر څو خلک دې ته تشویق کړي چې د پاکو اوبو لپاره نلونه تیر کړي.

۱- تاسي به د منطقې د خلکو تشویق لپاره څه ډول پیل کوي؟ د مثال په توګه تاسي به یوې لوئې غونډې ته خبرې کوي او که په انفرادي توګه به د خلکو سره خبرې کوي. که تاسي وغواړي چې غونډه لویه وي، نو څوک باید په غونډه کې برخه واخلي او څنګه به ئې راتلو ته تشویقوي.

۲- د اوبو د نلونو په هکله به د کومو خبرو او اعتراضونو سره مخامخ شي.

۳- تاسي به د خلکو خبرو او اعتراضونو ته څنګه ځواب ورکوي؟

٤- تاسي به څرنګه خلک د دغو نلونو او بود تهیه کولو د ګټو په برخه کې تشویقوي.

۵- ستاسي په فکر ولې ځیني خلک د نلونو د اوبو د نظر سره مخالف دي؟

۶- که تاسي قدرت ولري، نو د کلي خلک به د اوبو د نلونو تیرولو ته مجبور کړي؟

د یاملرنې وړ ده چې پورتنی پوښتنې د شاګردانو د خبرو او مناقشې د پیل کولو لپاره کافي زمینه برابروي. همدا رنګه د دې پوښتنو له لارې شاګردان مختلف نظریات څرګندوي چې په طرز العملونو کې ئې جوړښت او یا هم بدلون راځي.

## فعالیت :

داسی لارښوونې ولیکئ چې د شاګردانو یو وړوکی ګروپ ترتیب ورکړي.

دا لارښوونې باید د شاګردانو سره داسې مرسته وکړي ترڅو د خپل کار په هکله مختلفو برخو فکر وکړي په کوم ځایونو کې چې طرزالعملونه د پوهې یا مهارتونو په څېر مهم دي. د دې مناقشې مقصد باید داوي ترڅو شاګردان د ستاسې په پوښتنو مناقشه وکړي او خپلو طرزالعملونو ته وده ورکړي. د مثال په توګه تاسې داسې لارښوونې ترتیبولی شئ کومې چې شاګردان د رونغتیائي لوازمو د استعمال په برخه کې هراړخیزه یا ملرنی ترتشویقوي.

---

## (۲ - ۷) د رول پلی تمرینونه :

طرزالعملونه د خلکو سره د افهام او تفهیم لپاره ډیر مهم دي. که تاسې یوچاته احترام لرئ نوحتماً د هغه خبروته غوږ نیسئ او خبري هم ورسره کولی شئ.

دخلکو سره طرزالعملونه هغه وخت سنکېږي که تاسې د هغوئ په نظریاتو پوه شئ. د طرزالعملونو د تدریس یوه لاره داهم کیدلی شي ترڅو شاګردانو ته دځینې شیانو په هکله تجربې برابرې کړئ، د مثال په ډول ورته ووایئ چې دداسې یو سړي په هکله فکروکړي چاچې خپل زوی نوئ واکسین کړئ. داکار د رول پلي روش له لارې عملي کیدلی شي.

د دې لارې شاګردان د مختلفو خلکو په رول کې برخه اخلي او دهغوئ د نظریاتو په هکله تجربه ترلاسه کوي.

دا روش د افهام او تفهیم د مهارتونو د تدریس لپاره هم ډیر مهم دی، چې په شلورم فصل کې پرې په مفصله توګه بحث شوی دی.

## (۲ - ۸) نتیجه ګیري:

طرزالعملونه ډیر مهم دي، که څه هم د هغوی تعریف، امتحان او تدریس مشکل دي. په دي فصل کي د طرزالعملونو په هکله ورکړ شوي نظریات په حقیقت کي پیشنهادونه دي او علت ئې دادی چي د طرزالعملونو د تدریس په برخه کي څه منل شوي جامع روښونه نشته. دا یقیني خبره ده چي تاسي څه کوی، هغه به شاګردانو طرزالعملونو ته تغیر ورکوی، خو دا چي دا تغیر به څنګه وي دا خبره لږه نامعلومه ده.

---

### لنډیز:

۱- طرزالعمل د یو خاص سلوک څخه کار اخستل دي. د مثال په ډول که یو څوک د بشپړي پاملرني طرزالعمل ولري نو هغه به هر وخت د خپل کار مکمل او صحیح اړخونه ساتي.

۲- دا سي طرزالعملونو ته په اسانه توګه انکشاف ورکول کیدلی شي. ښوونکي باید شاګردانو ته یوازي دا ونه وائي چي «تاسي باید د اړخونو په ساتلو کي د مکملي پاملرني څخه کار واخلئ»، بلکه د دي په څنګ کي نور کارونه هم وکړي.

۳- طرزالعملونه د لاندینیو تګلارو په واسطه جوړیدلی شي.

(۱) د اساسي معلوماتو برابرول.

(۲) د موډل یا مثال برابرول.

(۳) د تجاربو برابرول.

(٤) شاګردان خپل مینځي مناقشي ته تشویقول.

(٥) د رول پلي تمرینونو څخه د کار اخستل.

## دریم فصل : د مهارتونو تدریس :

## مهارت څه شی دی ؟

هغه څوک چې په لومړنی روغتیائی ساتنه کی کارکوی د ډیرو مهارتونو څخه کار اخلی . هغوی امکان لری د خپلو لاسونو څخه د زخم پر پرېمنځلو د اوبو پر تهیه کولو یا د سامان په جوړولو کی په ماهرانه توګه کار واخلی . دغه راز مهارت تر عملی مهارت ویل کیږی .

هغوی بنائی د خلکو تشویقولو په برخه کی د خبرو کولو د مهارت څخه کار واخلی، لکه خلک کلینیک راتللو او یاد تغذیې د ښه والی لپاره د هقانانو کروندی ته تشویقول . د موضوعاتو د تشریح کولو او تشویقولو مهارتونو ته د افهام او تفهیم مهارتونه ته وائی .

د تصمیم نیولو لپاره هم مهارتونه شته . د دی څرګند مثال د تشخیص یا معالجی په هکله د روغتیائی کارکوونکی تصمیم دی . نور مثالونه د اسنادو وسائل ، د موادو د تهیه کولو غوښتنه ، د ځاکندانو یا ځا لپاره د ځای ټاکل او داسی نور دی چې د دے مهارتونو ته د فکر کولو یا تصمیم نیولو مهارتونه وائی .

د پورتنیو مهارتونو نومونه څه خاص اهمیت نلری ، بلکه د دی لپاره ئی یادونه شوی ده چی ممکن دغه شیان تاسی لوستلی او یا مو اوریدلی وی . د اهمیت وړ خبره داده چې دا مهارتونه د حقایقو د یا د ساتلو څخه ډیر مهم او د حقایقو د عملی کولو لپاره دی . د مثال په توګه د تشخیص په برخه کی یو روغتیائی کارکوونکی باید وکولی شی چې د ناروغه سابقه یاد داشت کړي ، علایم او مشخصات وپیژنی ، او بیا دغه معلومات د ناروغیو په هکله د خپلی پوهی سره مقایسه کړي . د پوهی د غې عملی کولو ته مهارت وائی . د ښوونکی لپاره د پامرلنی وړ ټکی دا دی تر څو مهارتونه په شاګردانو باندی تمرین کړي .

## (۳-۱) ایا مهارتونه مهم دی ؟

د پورتنی پوښتنی څرګند ځواب (هو) دی .

اکثره وخت سوپروایزران ، د اکتران او مشران روغتیائی کارکونکی شکایت کوی چی د روغتیائی کارکونکو د ښوونځیو شاگردان په نویو حقایقو پوهیږی خو حقایق عملی کولی نشی ، یا داسی ویلی شو چی شاگردان پوهه لری خو مهارتونه نه لری. د دی چاره څه ده ؟

• لمړی خبره ، ښوونکی باید دا ومنی چی د هغوی وظیفه د شاگردانو سره د مهارتونو په زده کړه کی مرسته کول دی .

• بیا ښوونکی باید اطمینان حاصل کړی چی د مهارتونو د تدریس لپاره کافی وخت موجود وی .

• وروستی خبره ښوونکی باید د مناسبو درسی روشونو څخه کار واخلی.
دا فصل ځینی هغه میتودونه تشریح کوی دکوموڅخه چی کار ده اخستل کیدلی شی .

## (۳ - ۲) د مهارتونو د تدریس روشونه :

ښوونکي د مهارتونو د تدریس په برخه کی اکثره د لاندنیو طریقو څخه کار اخلی :

۱- مهارت توضیح کوی ، او وائی چی مهارت څه شی دی ، ولی اهمیت لری او په کوم ځای کی باید تربینه کار واخستل شی .

۲- مهارت تمثیلوی ، او شاگردانوته د مهارت اجرا کول ښیئ ( ښوونکی اکثره پخپله یو مهارت اجراء کوی ) .

۳- تمرینی ساعتونه ترتیبوی . که څه هم د پورتنیو طریقو مرحلی سره نشی بیلید لی خو بیا هم په عمومی توگه معقولی دی . د مثال په توگه دا به ډیره په زړه پوری وی که موضوع د تمثیل څخه پیل شی . یا امکان لری شاگردان د تمرین څخه وروسته نور تمثیل ته هم ضرورت ولری .

مهارت اکثراً د تیوری له لاری توضیح کیږی او بیا امکان لری یوه هفته وروسته لیٔ شاگردان عملی کړی . دا کار معقول نه دی، خوکیدای شی

چې د ځینې اداري دلایلو له امله داسې وشي . معقوله لار داده چې باید تیوري او عملي کار یوځای تدریس شي .



« معقوله لار داده چې تیوري او عملي کار یوځای تدریس شي »

## (۳ - ۳) دیو مهارت توضیح کول :

دیو مهارت د تدریس لپاره لومړی پړاو د مهارت توضیح کول دي . په دې برخه کې باید وویل شي چې دا مهارت ولې اهمیت لري او شاګردان ئې باید څه لپاره زده کړي . همدا رنګه دا هم باید تشریح شي چې شاګردان څه وخت مهارت عملي کړي او د مهارت د اجرا کولو مراحل ورته واضح شي .

د مثال په ډول که تاسي د پیچکارۍ وهلو موضوع تدریسوئ ، نو دا څرګنده خبره ده چې ډیر شاګردان به په خیالي توګه پوهیږي چې پیچکاري څه شي دي او اهمیت ئې څه دي . خو که تاسې داسې مهارتونه توضیح کوئ چې په هغې کې میندې دې ته تشویقیږي چې خپل ماشومان کلنیک ته د واکسین لپاره راوړي ، نو امکان لري ځینې شاګردان ددې کار په اهمیت ونه پوهیږي .

دیو مهارت د اجراء د مراحلو په تشریح کولو کې د کار تجزیه ډیره مرسته کوي ځکه دا د کار د مهارت د مراحلو او عملي کولو په هکله معلومات ورکوي .

د کار د تجزیې عملیه د ښوونکي سره د مراحلو په ښه توګه د یاد ساتلو او واضح کولو په برخه کې مرسته کوي .

لاندېينی مثال ته وګورئ چې دکوم ځخه چې د ټولنې روغتيايی کارکوونکو د تدريس په برخه کې کار اخستل کيږي .

**دکار د تجزيې په اساس دشاګردانو لپاره د لارښوونو مثالونه**

---

دو اکتر له خوا ليږل شوو نا روغانو ته دخولې له لارې دوا ورکول .
د دوا ورکول :

١ - ناروغ ته د نوم په اخستلو سره ستړې مشې ووايې .
٢ - د دوا ضرورت ورته تشريح کړي .
٣ - يو ګلاس اوبه راوغواړي .
٤ - ناروغ ته په معين اندازه ټابليټونه ورکړي .
٥ - پرېږدي چې ناروغ دوا تيره کړي اوبيا لږې اوبه وڅښي .
٦ - د ناروغ سره تر هغه وخته ايسارشي چې دوا وخوري .
٧ - د دوا ورکولو ځخه وروسته ، د دوا راپور په فورمه کې وليکي .
٨ - ناروغ ته د دوا د بيا خوراک وخت وښيئ .

---

د امثال ځرګندوي چې :

١ - د لارښوونو ځخه ښوونکې د مهارت د توضيح کولو په وخت کې د مخه تيار شوي نوټ ( هنډاوټ ) يا معلوماتي پاڼو په شکل کې کار اخستلی شي .
٢ - شاګردان دغه لارښوونې د ځان سره ساتلی او مهارت د عملي کولو په وخت کې ورته مراجعه کولی شي ، يائې هم په خپلو يادا شتونو کې د کورس د خلاصيدلو نه وروسته دمأخذ په توګه کې ايښودلی شي .
٣ - ليکل شوي لارښوونې دکار کولو لازم معيار په ښکاره توګه ځرګندوي .
( ټول ښوونکی او امتحان اخستونکی په هغه يو معيار تعقيبوي ) .

٤ - څرنګه چې لارښوونې لیکلې شوې وي، نو شاګردان کولی شي چې یو بل امتحان کړي او په زړه کړه کې سره مرسته وکړي.

د غو لیکل شوو لارښوو نو (طرز العملونو) کارتونو یا د وظیفې د مرستې کارتونو هم وایي. د لتربیا یا د ونو کیږي چې د غدرلز تخنیکي مفاهیم څه خاص اهمیت نلري بلکه د پاملرنې وړ خبره دا ده چې ځینې ښوونکي فکر کوي چې دا ډیر ګټور دي او نور ډیر ښوونکي هم ترینه کار اخستلی شي.

## (۳-٤) د مهارت تمثیل :

کله چې یو مهارت توضیح شو، نو هغه باید تمثیل شي. کله تمثیل په هغه وخت کې هم اجرا کیږي چې یو مهارت توضیح کیږي.

د تمثیل په هکله ځینې څرګند ټکي شته چې تشریح کول ئې اسان، خو تعقیبول ئې ډیر ګران دي.

۱ - تمثیل باید صحیح وي. ښکاره خبره ده چې باید خراب روښانه تمثیل نه شي. د تمثیل په وخت کې باید د د اسې مواد وڅخه کار واخلی کوم چې په ساحه کې د شاګردانو د کار لپاره پیدا کیږي. د تمثیل په وخت کې باید ځان مطمئن کړي چې د تمثیل روښانه ډیر وخت او ډیرو مهارتونو ته ضرورت نلري. د مثال په توګه ګټغواړي چې په یوکلي کې د میندو سره د خیرو لپاره پوسترونه جوړکړي؛ نو تاسې باید ځان مطمئن کړي چې د دې پوسترونو د ضرورت مواد لکه کاغذ، رنګ او قلمونه شاګردانو ته په اسانه توګه په لاس ورتلی شي.



« تمثیل باید ټول شاګردان ولیدلای شي » .

روښونو سره ئې علاقه مند کړي . که تاسي شاګردان داسي عادت کړی
چي په صنف کي دی ناست وي او د معلم خبرو ته ئې غوږ نیولی وی ، نو دا به د هغوی
د زړه کړي لپاره نامناسبه وی . تاسي باید په دی احساس وپوهیږی
او شاګردان مطمئن کړی چه هغوی کولی شی د ښوونکي د لړبی رهنمائی په واسطه د خپلو
تجاربو نه کار واخلی او په ښه توګه زده کړه وکړی .
په یاد ولری چي ښوونه او روزنه د روغتیائی
ساتنی یوه ډیره مهمه برخه ده . د دی لپاره چي خپلو شاګردانو ته مو د
تدریس یو ښه مثال ښودلی وی ، باید تاسي په خپله هم د ښه درسی روښونو
څخه کار واخلی .

## ۱-۲ - څرنګه ښه تدریس کولی شئ ؟

دلته ستاسی د تدریس په هکله د پوښتنو یو لست ترتیب شوی
چي باید ځواب ورته ورکړی . که تاسي ډیرو پوښتنو ته «هو» ځواب ورکړ
نو بنائی ستاسی تدریس ښه وی . که ځواب مو «نه» وی او یا مطمئن نه وی
چي سوال څه دی ، نو په همدی فصل کي د ځوابونو برخی ته مراجعه وکړی . تاسي
به وګورئ چي لومړي دری پوښتنې د «فعالی زده کړي» سره ارتباط لری .
دغه عمومی میتود په (۱-۳) برخه کي په مفصله توګه توضیح شوی دی .
همدا راز نوری دری پوښتنی د فیدبیک ورکولو په هکله دی چي په
(۱-٤) برخه کي پری بحث شوی دی .

---

ایا تاسی د شاګردانو څخه پوښتنې کوی چه سوالونو ته ځواب ووائي ؟
ایا تاسی د مشکلاتو د حل لپاره د شاګردانو څخه پوښتنه کوی ؟ فعاله زده کړه (۱-۳)

ایا تاسی د شاګردانو لپاره د عملی مهارتونو د تمرین او فکر کولو
زمینه برابروی .

---

۲ـ تمثیل باید ولیدلای شي . ټول شاګردان باید هغه څه وګوري چي تاسي ئې تمثیلوی . که څه هم دا خبره هرچا ته څرګنده ده خو اکثره ښوونکي په دی برخه کی غلطی کوی . عمده مشکل په دی کی وی چه یا شاګردان ډیر زیات وی او یا د یو مهارت تمثیل د لري ځای څخه نه لیدل کیږي .

په دی برخه کی یوا ځنی لار دا ده چي د فلم یا تلویزون څخه کار واخستل شي . د هغو ښوونکو لپاره چي نوموړي مواد نلري نو کولی شي چي یو تمثیل څو واري تکرار کړي . د تمثیل په تکرار کی مشران شاګردان یا د تدریس مرستیال د ښوونکی سره مرسته کولی شي .

که ځني شاګردان تمثیل په ښه توګه ونشي لیدلی نو بیائې تکرار کړي .

۳ـ د تمثیل په هکله تشریحات ورکړي . یوا ځی دا کافی نه ده چي تاسی یو مهارت په صحیح او ښکاره توګه اجرا کړي بلکه تاسی باید د تمثیل په هکله تشریحات ورکړي او په مهمو ټکو ټینګار وکړي . د دی مقصد لپاره تاسی د مخه ترتیب شوی نوټ یا معلوماتی پاڼو څخه کار اخستلی شي .

د معلوماتی پاڼو یا هنډ اوټ د استعمال یو مثال چه دیوی موضوع په تشریح کی مرسته کوی .

---

د پیچکاری د لګولو لپاره تیاری :

۱ـ د سرنج یا د پیچکاری د میلي د واړه برخی او ستن په یو فلزی لوښی کی کیدی . په لوښی کی د ومره اوبه واچوي چي سامان پکی پټ شی او د شلو دقیقو لپاره ئې وجوشوی .

۲ـ خپل لاسونه په پاکو اوبو او صابون پريمينځی . لاسونه د صابون په زګ کی ومخي ترڅو ښه پاک شی او بیا پاکی اوبه پری تیری کړي .

۳ـ د هغه بوتل سرچي د پیچکاری دوا ( لکه پنسلین او یا نور مواد پکی وی ) د مالګی د محلول پواسطه د وه یا دری واری ښه پاک کړي .

٤ـ د همدی محلول پواسطه د وجود هغه برخه هم پاکه کړي په کوم ځای کی چي پیچکاری کوی . د پیچکاری کولو لپاره پرکوناټی کی لږ څه جګ او ښتګ خوا ته

ځای ونلاکی .

دمخه تیار شوی نوټ یعنې هنداوت (معلوماتي پاڼې) ګخه پرې توګه استفاده کیدلی شي. ښوونکی باید تشریح کړي چې پیچکاری د څه لپاره وهل کیږي . بیا دې شاګردانو ته معلوماتي پاڼې ورکړي . وروسته له دې نه ښوونکی باید شاګردانو ته د پیچکارۍ کولو ټول مراحل په ترتیب سره تمثیل کړي . د تمثیل په وخت کې ښوونکی باید هنداوت ته اشاره وکړي. دمثال په توګه ، هغه باید و وائي چې « اوس مونږ د پیچکارۍ وهلو دوهمې مرحلې ته راځو. تاسې باید خپل لاسونه داسې پرېمینځئ . دا په یاد ولرئ چې اوبه باید پاکې وي او صابون استعمال کړئ . دې ته موفکر وي چې یواځې د لاسونو لمدول کافي نه دي ، بلکه تاسې باید خپل لاسونه ښه ومخئ ترڅو د ناپاکۍ نه ښه پاک او یا جراثیم له مینځه لاړ شي... »

د تمثیل په وخت کې د هنداوت یا معلوماتي پاڼې ګخه دکار اخستلو یوه ګټه داده چې شاګردان ورسره اشنا کیږي اوهغوی دغه پاڼې د تکرار اویا بل وخت کې د مراجعې لپاره ساتي .

دمخه تیار شوي نوټ بله ګټه داده چې تاسې شاګردانو ته دضرورت ور مواد په خپله ورکوئ او هغوی د نوټ لیکلو ته ضرورت نلري ، په دې معنی چې شاګردان د تمثیل په وخت کې خپل ټول فکر د تمثیل لیدلو ته متوجه کوي ، نه داچې هم نوټ ترتیب کړي اوهم تمثیل وګوري .

## (۳ - ۵) د مهارتونو په اجراکولو کې د تمرین برابرول :

تمرین، د مهارت داجرا

کولو په تدریس کې یوه مهمه مرحله ده . له بده مرغه دا کارځیني وخت مشکل وي او ډیر وخت وغواړي. خو دې ټولو مشکلاتو سربیره ښوونکي باید هڅه وکړي چې د شاګردانو د تمرین لپاره کافي وخت برابر کړي .

د ښه عملي تدریسي ساعت لپاره اساسي ټکي دادي چې :

- ټول شاګردان د مهارت په هکله تمرین اجرا کړي .

• شاگردانو ته دمهارت داجرا کولو په وخت کی فیډبیک ورکړشی. د دی فصل پاتی برخه هغه میتودونه توضیح کوی چی ښوونکی تر ډیره کار اخستلی شی . هغه میتودونه دا دی .

• رول پلی (۳-۶) فصل
• پروژی (۳-۷) 〃
• مبا ډلونه (۳-۸) 〃
• د وظیفی تجربه (۳-۹) 〃

دپورتنیو روشونولست مکمل نه دی، خو بیاهم دځینی ممکنه روشونو په هکله یو څه معلومات ورکوی او هر یو ښوونکی د دی روشونو څخه کاراخستلی شی. ښوونکي نور روشونه هم لوستلی شی او یا داسی نوو روشونو ته انکشاف ورکولی شی چی د شاگردانو د ضرورت سره مناسب وی .

## (۳ - ۶) د مهارتونو په تدریس کی د رول پلی څخه کار اخستل ؛

بنائی دافهام او تفهیم

مهارتونو تدریس د مهارتونو د تدریس ډیره گرانه برخه وی . د دی علت دا دی چی په دی برخه کی ډیر محدود اصول دی . د مثال په توگه د دی خبری تشریح کول ډیر گران دی چی کوم شیان دیو ښه دلیل د وړاندی کولو لپاره ضروری دی .

همدا علت دی چی شاگردان باید ا فهام او تفهیم، مهارتونو زده کړی ته د تجربه خیلو طریقه انکشاف ورکړی او ضروری ده چی هغوی باید د تمرین لپاره ډیر وخت ولری . د شاگردانو تمرین باید د ښوونکی او یا بل شاگرد له خوا وڅارل شی .

رول پلی یو گټور روش دی چی شاگردان پکی په مختلفو رولونو کی، د ډرامی په شیر کار کولی شی.لاندی مثال وگوری ؛

---

مثال ؛

یو شاگرد ته ووائی چی د داسی روغتیائی کارکونکی په رول کی کار وکړی څوک چی دیو ماشوم مور دی ته تشویقوی چی خپل ماشوم ته د پولیو ( فالج ) د معافیت واکسین

وکړي .

یوبل شاګرد ته ووائې چې هغه دمور رول ولوبوي . هغه ته تشریح کړي چې دنې مور اوریدلي دي چې دمعافیت واکسین خطرناک دی ، او د ماشوم نیا هم په دې عقیده ده چې معافیت کوم ضروري شی نه دی . که څه هم دغه مور خپلې مور عقیدې ته احترام لري خو بیا هم باید تشویق شي .

دریم شاګرد ته ووائې چې هغه د نیا رول ولوبوي . دغه نیا په خپله خبره ټینګار کوي او وائې چې دهغې یو ماشوم ته هم واکسین نه وو شوی خو ټول ماشومان ئې صحتمند او قوي لوی شو . هغه په دې عقیده ده چې واکسین کول غیر ضروري او خطرناک کار دی .

اوس د رول پلې لوبغاړو ته ووائې چې یو روغتیائي کارکونکي په روغتیائي مرکز کې د مور او نیا سره خبرې کوي . د دې نه وروسته تاسې د رول پلې لوبغاړو څخه غوښتنه وکړئ چې د مور ، نیا او روغتیائي کارکونکي په هکله سنودل شوي رولونه داسې اجراء کړي چې د هغوي خبرې او عکس العملونه پکې سنودل شوي وي .

نورو شاګردانو ته ووائې چې رول پلې ته غوږ ونیسي او وګوري چې څه پیښیږي . هغوي باید د روغتیائي کارکونکي د رول صحیح او غلطې برخې نوټ کړي .

نور شاګردان باید په دې هم فکر وکړي چې که هغوي په رول پلې کې شامل وای نو څنګه به ئې خبرې او یا خپل کردار اجراء کړی وای ، او د کومو اضافي معلوماتو څخه به ئې کار اخستی وای ؟ ایا د هغوي د کار طریقه به بل شان وای ؟ امکان لري دا رول پلې څو دقیقې وخت ونیسي خو د دې نه وروسته مهم مرحله ، د مناقشې مرحله راځي .

د مختلفو شاګردانو څخه داسې پوښتنه وکړئ چې هغوي به په رول پلې کې څنګه کار کړی وای ، او هم د ټولو شاګردانو نه د روغتیائي کارکونکي د سلوک په هکله مناقشه ترتیب کړئ . د هغوي نه پوښتنه وکړئ چې نیا او مور څه احساس درلود . ایا نیا داسې احساس نه کاوه چې دهغې تجربه غلط وه . ایا مور د دا احساس نه وو چې هغې بې ځایه ټینګار کاوه ؟ د سنوونکي په توګه تاسې باید هڅه وکړئ ترڅو

شاګردان په رول پلی کی ډیر متوجه کړی چه دخلکو داحساساتو په برخه کی فکر وکړی . شاګردانو ته باید داهم وویل شوی وی چی یوازی حقایق دښه افهام او تفهیم لپاره کافی نه دی .

---

دا د رول پلی دتمرین یومثال و . دځینی نورو مثالونو په څیر هم فکر کولی شی کوم چی دشاګردانو سره دافهام او تفهیم دمسایلو په پوهیدلو کی مرسته کولی شی .

مثالونه داسی ساده هم کیدای شی لکه پورتنی ، او مغلق هم .

دمثال په توګه دپورتنی مثال په څیر تاسی داسی معلومات هم زیاتولی شی چی ، په یوکلی کی یو ماشوم واکسین کولونه وروسته د یو بیل مرض له امله مړ شو . یا داسی هم کیدلی شی چی دیو ماشوم پلار روغتیائی مرکز ته د بحث په وخت کی راشی . امکان لری هغه دمعافیت په پلوی یا خلاف قوی دلایل او نظریات ولری .

که تاسی درول پلی لپاره هر ډول حالات برابروی ، نو شاګردان به داره ګیرنی ته ضرورت لری ، ځکه ځینی به ډیر شرمیږی او یا به ویریږی چی غلطی ونکړی .

دا به ښه نه وی چی تاسی یو شاګرد یو رول اخستلو ته مجبور کړی ، بهتر خو چی هغه نور شاګردان په عمل کی نه وی لیدلی . تاسی باید هڅه وکړی چی وضعه ښه خوشحاله وساتی او ځان ښه مطمئن کړی چه شاګردان داسی احساس وکړی چی دا د زده کړی تجربه ده نه امتحان !

که څه هم دا دمهارتونو دتمرین لپاره ډیر ګټور روش دی او شاګردانو ته دافهام او تفهیم په برخه کی پوهه ورکوی ، خو ځینی محدودیتونه هم لری . یوا ساسی محدودیت دا دی چی ددی میتود نه داستفادی په وخت کی دشاګردانو شمیر د پنځلسو څخه زیات نه وی . ددی دلیل دادی چی نوموړی روش په پای کی باید مناقشه ترتیب شی تر څو ټول شاګردان پکی برخه واخلی . که چیری دشاګردانو

شمیرزیات وی نو دا کار ممکن نه دی .

د دی روش بل محدودیت دا دی چی هغه شاګردان چی دیو چا رول لوبوی هغه یوائی رول دی. نوله دی امله شاګردان باید دحقیقی خلکو او نظریاتو په هکله هم دافهام او تفهیم تجربه ولری .

د دی ټولو محدودیتونو سربیره ، رول پلی دافهام او تفهیم د مهارتونو په زده کړه کی ډیر ګټور روش دی .

(۳ - ۷) پروژی :

پروژی داوبزدی مودی کورسولو مهمی برخی تشکیلوی . په یوه پروژه کی یو یا دری او یا څلورتنی ګروپ شاګردانو ته یوه خاصه وظیفه ورکول کیږی. دمثال په توګه شاګردانو ته ویل کیږی چی دیوکلی روغتیائی مشکلات پیدا کړی. یا ورته ویل کیږی چی دحفظ الصحی یا تغذئي په هکله د سبوئخی د شاګردانو خیالات معلوم کړی .

د پروژی په کارونو کی شاګردان حقایق پیدا کوی . په دی کارونو کی دخلکو سره دخبرو له لاری او دراپورونو د غونډولو او ورکولو پواسطه د شاګردانو مهارتونه هم زیاتیږی . خو دامهارتونه د ټاکل شوو پروژو د شکل پوری تړلی دی .

په نظری توګه دپروژو کارونه د تجاربو د زده کړی په برخه کی ډیر ګټور دي خو کله خرابیدلی هم شی . په دی برخه کی باید سبوونکي شاګردان لتشویق او مرسته ورسره وکړی نه داچی ټول کار پخپله وکړی . د پروژی د کار په پای کی تربیت شوی راپور باید ټول صنف ته وړاندی شی ترڅو نور شاګردان هم د پروژو د کارونو د تجاربو څخه ګټه واخلی . دیادونی وړ ده چی دا کارونه وخت غواړی .

د پروژی کارونه په دی توګه ترسره کیدلی شی چی سبوونکی خاصه علاقه ولری ، دشاګردانو سره مرسته وکړی او د شاګردانو شمیر ډیر زیات نه وی . که په یو صنف کی دشاګردانو شمیر د څلویښتو څخه زیات وی نو د دی شکل دکارونو ترتیبول به ډیر ګران وی .

(۳ - ۸) ماډلونه :

دساده او مکملو ماډلونو تعریف ډیرګران دی ، نو دا بر سنه وی چې ځنی مثالونه رانقل کړو . د یوی عضوء نه د ماډل په توګه هغه وخت کار اخستل کیدلی شی ،کله چې شاګردان هغه د پیچکاری کولو د تمرین لپاره استعمالوی . په دی حالت کی عضوء د یو ناروغ د پوستکی او غوښې ماډل دی .

ځنی ماډلونه اخستل کیدلی او یا جوړیدلی شی ، او ځنی هم لیکلی وی. دغه راز ماډلونه د ناروغ د مشکلاتو د تدابیرو په نوم یادیږی چې د امتحان په فصل کی توضیح شوي دي .

د ماډلونو د استعمال اساسی مقصد دا دی ترڅو شاګردانو ته د ناروغانو یا قیمتی سامانونو په هکله د عملی کار نه مخکی تجارب او تمرینونه برابر کړی .

د ښوونکو لپاره یو مشکل دا دی چې ماډلونه په اسانه توګه نه پیدا کیږي. نو په دی برخه کی باید ښوونکی پخپله د داسی ارګانونو په هکله فکر وکړی کوم چې د شاګردانو لپاره ګټور وی .

(۳ - ۹) د کار تجربه :

د شاګردانو لپاره ډیر ګټور تمرین دا دی چې یو کار په خپله اجرا کړی ، خو د اطبیعی خبره ده چې د شاګردانو کار باید کنترول شی .

د پورتنی کار لپاره یوه لاره داده چې شاګردان باید د یو تجربه کار روغتیائی ساتنی کارکونکی سره د ځمودی لپاره کار وکړي . دا بر سنه وی که یو یا دوه شاګردان د یو مشر روغتیائی کارکونکی سره عملی کار وکړي ترڅو د کار د ونو په طریقه پوهه شی . مشر روغتیائی کارکونکی یا سوپروایزر به په تدریجی توګه د شاګرد کارونه زیاتوی او د کارونو د اجرا کولو په وخت کی سوپروایزر باید ځان مطمئن کړی چې شاګرد ډیره لویه غلطی ونه کړي . همدا رنګه سوپروایزر باید د شاګرد د کار ښه او خرابی برخی وښاری او د خرابو برخو د ښه کیدلو لپاره ورته لارښوونه وکړی .

د وظیفی دغه راز تجربې څخه په پراخه توګه کار اخستل کیږي چې په روغتیائی مرکزونو

کې کار کول د دېمې تجربې څرګند مثالونه دي .

که څه هم د دې روش څخه په پراخه توګه کار اخستل کېږي خو اکثره وخت نه
نه وي . محلي اګزاد روغتيا مرکز سره د کارکولو په وخت کې ټول شاګردان ديو کارکونکي سره
کار کوي . په دې حالت کې د مثال په توګه د پنځلسو يا لسو شاګردانو د جملې څخه
يواځې يو تن په عملي توګه يو مهارت اجرا کوي او نور ورته ګوري . د اسې کار ډېر ستړي
کوونکي ، او حتی نه کار ئې هم مؤثر نه وي .

ځيني وخت سنوونکي يا روغتيائي کارکونکي په خبرو او تمثيل ډېر وخت تير
وي ، چې په دې حالت کې هم د شاګردانو د ضروري تمرين لپاره وخت نه پاتې کېږي .
که سنوونکي او يا روغتيائي کارکونکي يواځې ليکچر ورکړي ، نو همدا علت دي
چې د وظيفي تجربي روش نظري بنه غوره کوي .

د دې ټولو نواقصو او خطرونو سربېره ، د وظيفي د تجربې روش د شاګردانو
سره د مهارتونو په زده کړه کې ډېره مرسته کوي . په دې اساس بايد ډېره هڅه وشي
تر څو شاګردانو لپاره د روغتيائي کارکونکو سره د کارکولو زمينه برابره شي . په دې
برخه کې بايد روغتيائي کارکونکو ته وويل شي چې د دې کار مقصد د شاګردانو عملي
تمرين او سوپروېژن دی ، نه دا چې هغوی ته يواځې نظري درس ورکړ شي .

## (۳ - ۱۰) څومره وخت ته ضرورت دی ؟

د دې پوښتني لپاره ، چې شاګردان د
مهارتونو د زده کړې لپاره څومره وخت ته ضرورت لري ، د ځواب ورکول ډېر ګران
کار دی . دا خبره ته يوې اندازې ربنتيا ده چې اکثره کورسونه د مهارتونو او طرز العملونو
زده کړې په ځای ، د تيوری زده کړې ته ډېر وخت ورکوي . د ډېرو وظايفو په برخه
کې شاګردان د ضروري حقايقو د زده کړې په ځای ، د ضروري مهارتونو او طرز العملونو
د نه زده کړې لپاره ډېر وخت ته ضرورت لري . که څه هم دا اصول څه استثنائي
حالات لري خو څرګنده خبره دا ده چې بايد د مهارتونو د عملي کولو او تمرين
لپاره ډېر وخت ورکړل شي .

## (۳ - ۱۱) لنډيز :

مهارتونه څنګه تدريسولی شی :

۱ - د شاګردانو لپاره د ضروري افهام او تفهيم ، فکر کولو او د عملي مهارتونو تدريس ډير ضروري دی .

۲ - مهارتونه په عمومي توګه داسې تدريسيږي چې :

- مهارتونه توضيح شي .
- مهارتونه تمثيل شي .
- هر يو شاګرد ته د مهارت د عملي کولو وخت ورکړ شي .

۳ - رول پلې ، پروژې ، ماډلونه او د وظيفې تجربه ځينې هغه لارې دي چې شاګردان پکې د مهارتونو تمرين کولی شي .

٤ - د روغتيايي کارکونکو په کورسونو کې بايد دوه پر دريو يا زيات وخت د مهارتونو د تدريس لپاره ورکړي شي .

## څلورم فصل : د پوهې تدریس :

### پوهه څه اهمیت لري ؟

دا سنکاره خبره ده چې ټول روغتیائي کارکونکي باید د خپلو کارونو د اجراکولو لپاره څه پوهه ولري . دا هم ربښتیا ده چې کوم بل ډول پوهې ته خاص ضرورت نشته . د مثال په توګه، یو روغتیائي سنوونکي باید وپوهیږي چې کوم محلي خواړه پروتین لري ، چې دا یوه ضروري پوهه ده . خو بر خلاف یو روغتیائي کارکونکي د مختلفو پروتینو د نوموړو پوهیدلو ته خاص ضرورت نلري . همدا رنګه روغتیائي کارکونکي د پروتینو د هضم مراحلو پوهیدلو ته هم کوم خاص ضرورت نلري .

ویلی شو چې ځنې حقایق مهم او ځنې هیڅ ګټور نه دي ، په دې معنی چې سنوونکي باید د تدریس لپاره حقایق انتخاب کړي . سنوونکي باید ټول کتاب تدریس نکړي ، او نه د بې ربط معلوماتو په ویلو سره ځان شاګردانو ته ډیر پوهه او لایق وښئ .

په څرګنده توګه هیڅ سنوونکي قصداً خپل درسي ساعتونه د بې ربط حقایقو په ویلو نه تیر وي ، خو مشکل د مهمو ، ګټورو او مناسبو حقایقو انتخابول دي . په دې برخه کې د وظایفو تجزیه ډیره مرسته کولی شي ، ځکه هغه ښئ چې د یوې وظیفې لپاره کومو معلوماتو یا پوهې ته ضرورت دی .

### (۴ - ۱) د مختلفو حقایقو تدریس :

په دې فصل کې وښودل شو چې ځنې حقایق مهم دي او ځنې خاص اهمیت نلري . هغه حقایق چې په مختلفو برخو کې اهمیت لري ، باید د مختلفو لارو تدریس شي .

دلته د داسې روغتیائي کارکونکو د ترینینګ مثال ورکولی شو چې د معافیت د پروګرام د تطبیق مسئولیت په غاړه لري . په دې ترینینګ کورس کې به لاندینی معلومات شامل وي : ( کیدای شي په دې برخه کې نور معلومات هم وي ! )

الف - واکسین باید چیرته وساتل شي .

ایا تاسی شاګردانو ته وائی چی هغوی څنګه ښه کار کوی؟

**د فیډبیک ورکول (۱-۴)**

ایا تاسی شاګردانو ته د هغوی غلطی واضح کوی؟
ایا تاسی شاګردانو ته تشریح کوی چی هغوی څنګه ښه کار کولی شی؟

---

**وضاحت (۱-۵)**

ایا شاګردان کولی شی چی واوری او وګوری؟
ایا تاسی په ساده ژبه خبری کوی؟
ایا تاسی د بصری مواد استعمالوی؟

---

**خپل تدریس مؤثر او پر معنی کول (۱-۶)**

ایا تاسی چی د څه په هکله خبری کوی هغی ته د شاګردانو ژوند سره ارتباط ورکوی؟
ایا ډیر مثالونه ورکوی؟
ایا تاسی چی د څه په هکله خبری کوی هغی ته د شاګردانو د راتلونکی کار سره ارتباط ورکوی؟ ایا خلاصه کوی.

---

**د ښه پوهی اطمینان حاصلول (۱-۷)**

ایا تاسی دا معلوموی چی شاګردان په هره نقطه پوهه شوی دی؟
ایا تاسی همیشه ګوری چی هر یو شاګرد مهارتونه او تمسیتونه زده کړی او که نه؟

---

**فردی اختلافات (۱-۸)**

ایا تاسی خپل شاګردان پریږدی چی په مختلفه چټکتیا سره کار وکړی؟
ایا تاسی خپل شاګردان تشویقوی چی په مختلفو طریقو زده کړه وکړی؟
ایا تاسی د ډیرو درسی میتودونو څخه کار واخلی؟

---

**پاملرنه (۱-۹)**

ایا تاسی شاګردانو ته دا احساس ورکوی چی تاسی د هغوی سره کار کولو ته پاملرنه کوی؟
ایا تاسی دا ښئ چی د درسی ساعاتو لپاره بشپړی تیاری ته پاملرنه کوی؟
ایا تاسی د خپل تدریس په هکله د شاګردانو نظریات اوری؟

ب- و اللینوته باید د هغوی د ماشومانو د واکسین کولو په هکله ځنګه
تشریحات ورکړل شی.
ت- د واکسین د کشف نیټه.
ث- د حرارت په مختلفو درجوکی د واکسین د ساتلو نیټه.

الف- دا یو ضروری حقیقت دی. په دی برخه باید ډیر ټینګار وشی او ښوونکی باید ځان مطمئن کړی چی ټول شاګردان دا خبره په یاد ولری او په امتحان کی شامل شی.

ب- دا برخه هم مهمه ده او اهمیت ئی په دی کی دی چی شاګردان باید لازم تشریحات ورکړای شی. دلته یوازی د حقایقو تدریس کافی نه دی بلکه مهارتونه هم باید زده شی. همدا رنګه دلته باید یوازی حقایق امتحان نه شی، بلکه مهارت هم امتحان شی.

ت- د واکسین د کشف د نیټی پوهه د هرچا لپاره بنیادی ضروری نه وی، خو که د پولیو د واکسین د کشف د پس منظر معلومات او کیسه بیان شی نو دا به د درس موضوع په زړه پوری کړی. له دی کبله د دی برخی شاملول هم په مبحث کی ضروری ښکاری، خو ښوونکی باید شاګردانو ته دا درک او احساس ورکړی چی دا معلومات یوازی د پس منظر بڼه لری، د یادولو ضرورت ئی نشته او نه هم د امتحان برخه کیدلی شی.

ث- ځرنګه چی د واکسین د ساتلو نیټی مهمی دی نو له دی کبله باید شاګردانو ته وویلی شی. امکان لری د ځینی واکسینو په هکله معلومات ډیر مفصل وی چی په دی صورت کی ښوونکی باید حقایق په کتاب کی ولیکی تر څو شاګردان ئی د ځان سره وساتی. د ښوونکی لپاره د پاملرنی وړ خبره دا ده تر څو ځان مطمئن کړی چی دا حقایق په صحیح توګه لیکل شوی او که نه، ځکه دا به د شاګردانو لپاره د مأخذ بڼه لری.

## (۴-۲) شاګردان باید حقایق د کوم ځای څخه تر لاسه کړی؟

شاګردان حقایق

او یا معلومات د سبوونکی څخه زده کولی شی . په دی برخه کی سبوونکی د معلوماتو د منبع حیثیت لری ځکه سبوونکی په حقایقو پوهیږی او هغه شاګردانو ته وائی .

سربیره پر دی د معلوماتو لپاره نوری منابع هم شته چی ترینه کار اخستل کیدلی شی ، لکه ځینی هغه کتابونه چی د روغتیائی کارکونکی لپاره مناسب معلومات برابروی . همدا رنګه د روغتیائی کارکونکو لپاره ځینی فلمونه ، تصویرونه ، او عکسونه هم په خاصه توګه برابر شوی دی .

د معلوماتو یو بله منبع حقیقی نړی یا محیط دی . تاسی باید شاګردانو ته دا وښوائی چی کوم دیوالی علاج ولنشی نو څه به پیښ شی — او نوره هغه خواره تشریح کړی چی میندی ئې خپلو ماشومانو ته ورکوی . ددی علت دا دی چی ستاسی شاګردانو به دا شیان پخپله لیدلی وی . نو له دی کبله تاسی باید د شاګردانو د حقیقی تجربو څخه کار واخلی . همدا رنګه تاسی کولی شی چی خپل شاګردان د معلوماتو راټولو لپاره کلیو ته ولیږی . هغه معلومات چی د دی لاری راټول شی ، د سبوونکی د خبرو او الفاظو په نسبت د شاګردانو لپاره ډیر حقیقی دی ، او ښه زده کیدلی شی .

داسی فکر مه کوی چی تاسی هر څه پخپله شاګردانو ته ووایئ ، بلکه شاګردان تشویق کړی تر څو د کتابونو ، ماه لوڼو او دیوبل د تجاربو څخه خپله زده کړه وکړی .

## (۴ - ۳) د درسی موضوع د عناوینو پلان جوړول :

کله چی غواړی ځینی حقایق تدریس کړی ، نو تاسی باید د هغوی د تدریس لپاره درسی پلان جوړ کړی .

ددی کار لپاره ښه لاره دا ده چی لمړی د یوی وظیفی څخه پیل وکړی او وروسته نور و اساسی مطالبو ته راشی . د مثال په توګه ، وظیفه د ملاریا د میاشو کنټرولول دی . هغه مطالب چی تاسی به ئې ویل غواړی په لاندی ډول به وی :

• هغه ځایونه چې ماشې پکې پیدا کیږي.
• د دغو ځایونو د منځه وړلو طریقې.
• د ماشو د هستوګنې د ځایونو څخه د ماشو د استفادې مخنیوی.
• او داسې نور . . .

کله چې تاسې د پورتنیو مطالبو د تدریس په هکله تصمیم ونیو، نو بیا باید په ترتیب سره مخکې لاړ شئ، (په دې معنی چې ترڅو تاسې د ماشو د پیدا کیدلو په ځایونو پوه نشئ، نو نشئ کولی چې دې برخې ته راشئ چې د ماشو د هستوګنې د ځایونو څخه دې د ماشو مخنیوی وشي).

بیا د هر یو مطلب د تفصیل په هکله فکر وکړئ، چې باید کوم حقایق په یاد وساتل شي، کوم حقایق د هغه مطلب په زړه پورې کړي او د کومو حقایقو څخه باید د مأخذ په توګه کار واخستل شي.

## (۴ - ۴) تدریس:

د یوې موضوع د تدریس لپاره ډیرې لارې دي. لاندینی مشوره یوازې یوه نمونه ده چې تاسې کولی شئ دې ته تغییر او انکشاف ورکړئ. همدارنګه دا یوه اساسي لارښوونه ده چې تربیه کار اخستلی او انکشاف هم ورکولی شي.

۱- شاګردان متوجه کړئ: د شاګردانو د متوجه کولو لپاره تاسې هغوی ته د موضوع اهمیت تشریح کړئ. او یا داسې کیسه ورته ووایئ چې د موضوع اهمیت پکې ښودل شوی وي. تاسې شاګردانو څخه دا پوښتنه هم کولی شئ چې هغوی د دې موضوع په هکله څه پوهیږي او یا د هغوی په فکر د دې موضوع اهمیت څه دی.

۲- د موضوع خلاصه بیان کړئ. د درس هغه شیان تشریح کړئ چې تاسې ئې تدریسوئ. دا کار د شاګردانو سره د درس د مربوط موضوعاتو په پوهیدلو کې مرسته کوي.

۳- دا معلومه کړئ چې شاګردان د مخه څومره پوهیږي. په دې ځان مطمئن کړئ چې ایا شاګردان په ځینو هغو حقایقو پوهیږي کوم چې تاسې تدریسوئ. د مثال په توګه

کړ تاسي فکر کوئ چې شاګردان د سینه ... غل په هکله دا ناتوانی د ځنی برخو په هیلو ته ضرورت لري، نو تاسي باید دا معلومه کړئ چې هغوی پوهیږي او که نه.

٤ - حقایق او معلومات وړاندې کړئ. تاسي شاګردانو ته حقایق ویلی شئ او یا:

- د معلوماتي پاڼو پاڼو او تخته کار واخلئ.
- شاګردانو ته ووایئ چې د کتاب یوه برخه ولولي.
- یو شاګرد څخه غوښتنه وکړئ چې حقایق توضیح کړي.
- د سمعي او بصري موادو څخه کار واخلئ.
- ماډلونه، مواد او یا مریضان وښیئ.

٥ - یوه فعالیت ترکیب کړئ. دا فعالیت باید داسي وي چې شاګردان د تدریس شوو حقایقو څخه یکی کار واخلي، چې دا د تدریس ډیره مهمه برخه ده. د مثال په توګه تاسي د یو شاګرد او یا د شاګردانو د یو ګروپ څخه پوښتنه کولی شئ چې «تاسي به څه وکړئ که ...» یا «دا به څنګه وکړئ ...».

د فعالیت یو بل مثال د نوتونو لیکل او یا د معلوماتي پاڼو د تشو ځایونو ډکول هم کیدلی شي.

٦ - لنډیز: د درس عمده نقاط بیا تکرار کړئ چې باید شاګردان ئې په یاد ولري.

٧ - ټیسټ: دا معلومه کړئ چې مهم نقاط شاګردانو زده کړي او که نه.

٨ - د تدریس څخه وروسته تمرین ترتیب کړئ. په دې برخه کې شاګردانو ته ویلی شئ چې د راتلونکی درس د تیاری لپاره کتاب ولولي، په ټولنه کې یو خاص کار ترسره کړي او یا د تیری زده کړي تکرار وکړي.

امکان لري تاسي فکر وکړئ چې دا درسونه د هغو درسونو په شیر نه دي کوم چې تاسي د خپلی متعلمی په دوره کی لیدلی وو. دا هیڅ فرق نه کوي. یوه درسي موضوع باید شاګردان په عملي کارونو کی شامل کړي، یوازې او یوازې د ضعیفی او کړاره زده کړي طریقه ده.

## (٤ - ۵) د تدریس په وخت کې باید ښه خبرې وشي :

تاسي باید ټول وخت په

خبرو تیر نکړې ، ځو کله چې خبرې کوې باید لاندنیو ټکو ته پاملرنه وکړې .

۱ - ایا تاسي په لوړ اواز خبرې کوې ؟ معمولاً ښوونکي د شاګردانو مخې

ته ودریږې . هغه څوک چې شاته ناست وي امکان لري د ښوونکي خبرې وانه وري

او زړه کړه ونشي کولی . که تاسي مطمئن نه ئې چې ایا ستاسي خبرې اوریدل کیږي او که نه؟

نو دیو ملګري څخه غوښتنه وکړې چې د صنف په اخر کې کیني او بیا تاسي ته ووائي .

۲ - ایا ستاسي خبرې واضح دي ؟ ستاسي به په لوړ اواز خبرې کوې ، خو امکان

لري چې واضح نه وي . تاسي باید ځان مطمئن کړې چې خبرې او الفاظ مو واضح

دي . د خبرو په وخت مخ تختې او یا نوټ خوا ته مه اړوې .

۳ - ایا ستاسي خبرې ساده دي ؟ په دې ځان مطمئن کړې چې ستاسي خبرې دومره

ساده دي چې شاګردان پرې پوهیږي . دا ټکی د دې لپاره اهمیت لري چې ستاسي

شاګردان د مختلفو ټولنو څخه راغلي دي چیرته چې په بیلو بیلو ژبو خبرې کیږي .

٤ - ایا تاسي په علاقه مندۍ سره خبرې کوې ؟ د ځیني ښوونکو خبرې ښې او

په زړه پورې نه وي . د هغوی خبرې خفه کونکي وي او شاګردان هم ډیر زر خسته

کوي . کوشش وکړې چې خپلو خبرو او اواز ته داسي بڼه ورکړې تر څو شاګردان

ورسره مینه پیدا کړي .

## (٤ - ٦) بصري مواد :

ځیني تدریسي نظریات او حقایق د ډیاګرامونو او یا

تصویرونو پواسطه ښه تشریح کیدلی شي . تاسي باید د بصري موادو څخه

استفاده وکړې . د غه بصري مواد په لاندې ډول دي :

- تخته
- چارټونه
- د توری تختې

- سلاید پروجکتور
- فلمونه
- عکسونه
- او داسی نور ....

امکان لری ځینی نوموړی شیان موجود وی، خو کله به ځینی مواد لکه ( فلمونه او عکسونه ) په خاصه توګه تاسی لپاره تیاریږی .

ځینی مواد تاسی پخپله هم تیارولی شی . کله چی مواد تیاروی نو باید لاندے ټکوته پاملرنه وکړی :

۱ - د ډایګرامونه باید ډیر ساده وی - ځکه غیر ضروری تفصیلات شاګردان مشوش کوی .



«ځان مطمئن کړی چی لیدونکی ټول کلمات لوستلی شی .»

۲ - ځان مطمئن کړی چی لیدونکی ټول کلمات لوستلی شی . ( دا یوه څرګنده خبره ده خو اکثره وخت ورته پاملرنه نه کیږی ) . دی برخی ته په هغه وخت کی پاملرنه په کار ده کله چی تاسی په تخته لیک کوی .

۳ - د هر یوه ډیاګرام په هکله خبری وکړی ترڅو مطمئن شی چی ایا شاګردان په ټولو علایمو پوه شوی دی او که نه .

## (٤-٧) په تدریس کې د معلوماتي پاڼو (هنداوټ) استعمال:

معلوماتي پاڼې د تدریس د ښه کولو

یو لار ده. ددې نوټونو څخه په لاندې دوو طریقو کار اخستل کیدلی شي.

- د نوټونو د لیکلو لپاره د لارښود په توګه.
- د حقایقو د دایمي ساتنې په توګه.

امکان لري چې معلوماتي پاڼې په دواړو لارو کې مرسته وکړي، خو اکثره وخت ئې

باید د یوې برخې په استعمال کې تینګار وشي.

د نوټونو لاندې مثال ته وګورئ:

## مثال:

د شاګردانو د نوټ لیکلو لپاره د معلوماتي پاڼې یو مثال.

| |
|---|
| **ملاریا**<br><br>نښې او علایم:<br>د ناروغ معالجه:<br>د ناروغۍ څرنګوالی:<br>څوک په خطر کې دي؟<br>ملاریا څنګه خپریږي.<br>د ملاریا مخنیوی: |

د غه ساده معلوماتی پاڼو تدریس لږ څه فعاله کوی او همدا رنګه په زده کړه مرسته کوی.

د پاملرنې وړ ده چې معلوماتی پاڼې د درس موضوع ته جوړې ثبت وړکړی او د ښوونکی سره د مهمو نقاطو په یادولو کی مرسته کوی. د دغسی حرکات نه په استفادی سره ښوونکی، تدریس د شاګردانو څخه په دی پوښتنه پیل کولی شی چې «ایا څوک د ملاریا په ناروغی کله اخته شوی دی؟» بیا ترینه د ملاریا د خپرنګوالی، علایمو او نورو شیانو په هکله پوښتنې وکړی. کله چې هره برخه خلاصیږی نو شاګردان به خپلو نوټونو کی اساسی ټکی لیکی.

اوس یو بل ډول نوټ ته پاملرنه وکړی.

### واکسین

څه وخت او څومره

| عمر چې په هغې کی د واکسین کول شروع کیږی | د واکسین نوم | د ناروغی نوم | څو واری |
|---|---|---|---|
| زیږیدنه | بی سی جی B.C.G | نری رنځ T.B | یو وار |
| شپږ هفتی | پولیو Polio | پولیو Polio | دری ځلی، کم ترکمه د یوی میاشتی په وقفی سره. |
| شپږ هفتی | ډی.پی.ټی D.P.T | خناق، شنه ټوخله، ټیټانوس | دری ځلی، کم ترکمه د یوی میاشتی په وقفی سره |
| نهه میاشتی | شری | شری | یو ځل |
| حامله ښځې | ټی ټی T.T | ټیټانوس | دوه ځلی کم ترکمه د یوی میاشتی په وقفی سره |
| کله چې د ماشوم عمر د ولسو میاشتو ته رسیږی، باید ټول واکسین ورته شوی وی. | | | |

دا دویم مثال ډیر فرق لري . په دې مثال کې هغه معلومات ورکړ شوي چې شاګردان وروسته ورته مراجعه کولی شي .

سبوونکي د هغه معلوماتو پایانې شاګردانو ته په صنف کې د تدریس په وخت کې ورکولی شي . دا کار د ښوونکی وخت نه ضایع کوي که نه هغه باید داټول چوکات په تخته رسم اوبیا انتظار وباسي ترڅو شاګردان ئې کاپي کړي. په دې اضافي وخت کې ښوونکی کولی شي چې د شاګردانو د معلوماتو د پوهې په هکله پوښتنې وکړي .

د مثال په توګه ښوونکی پوښتلی شي چې د یو ماشوم د زیږیدلو څخه څو مره وروسته باید د ټولنې روغتیائي کارکونکي د هغه کورته ورشي ترڅو د ماشوم کوچنې واکسین وهلو ته تشویق کړي ؟

---

(٤ - ٨) لنډیز :

١ - یوازې هغه حقایق تدریس کړي چې شاګردان ورته ضرورت لري .

٢ - یوازې خبرې مه کوی ، بلکه د شاګردانو لپاره تمرینونه او فعالیتونه هم ترتیب کړي .

٣ - شاګردان دې ته تشویق کړي ترڅو د کتابونو د خپلو او د یو بل تجاربو څخه حقایق ترلاسه کړي .

٤ - د بصري موادو او معلوماتي پاڼو څخه استفاده وکړي .

---

# دویمه برخه

## دا معلومول چې ستاسې شاګردانو زده کړه کړې ده او کړنه .

## پنځم فصل : دامتحان عمومي مسایل :

د ښوونکې د کار یوه مهمه برخه دا ده ترڅو معلومه کړي چې شاګردانو څومره زده کړې ده . دا کار د امتحان او یا د شاګردانو د عملي کارونو د لیدلو له لارې کیدلی شي . د هر روش څخه چه کار اخلی، هغې مرحلې ته امتحان ویل کیږي .

دا فصل دامتحان د مختلفو روشونو عمومي مسایل او ستونځې څیړي .
د دې فصل عمومي مسایل په لاندې ډول دي :

- دشاګردانو د امتحانولو لپاره دلایل (۵ - ۱)
- کوم شي امتحان د رضایت وړ ګرځوي (۵ - ۲)
- په دې اطمینان حاصلول چې امتحان په رښتیا سره مهم قابلیتونه او مهارتونه معلوموي یعنې (صحت ) (۵ - ۳) .
- امتحان د باور یا اطمینان وړ ګرځول (اعتبار ) (۵ - ٤) .
- دامتحان څخه په زده کړه کې د مرستې په توګه کار اخستل (۵ - ۵)
- دوامداره امتحان (۵ - ٦)
- دخپل ځان امتحانول (۵ - ۷)
- د شاګردانو پواسطه د یو بل کارونه امتحانول (۵ - ۷)

## (۵ - ۱) ولې شاګردان باید امتحان شي ؟

امکان لرې ډیر ښوونکي دا خبره ومني چې باید شاګردان یو ډول از موینې تیره کړي او یا د کومې بلې لارې د هغوی لیاقت معلوم کړای شي ، یا په ساده الفاظو شاګردان باید امتحان شي .

## ۱-۳ - فعال زده کړه .

په دې برخه کې ډېرې تجربې ترسره شوې تر څو دا معلومه کړي چې شاګردان د ښوونکي د لیکچر د اوریدلو څخه خومره زده کړه کولی شي . دې تجربو ښودلې ده چې په دې حالت کې شاګردان ډېره لږه زده کړه کوي.
دا کار په تخته باندې د لیکنو ، ګرامو فونو او تصویرونو په واسطه ښه کیدلی شي .
د دې لارې څخه شاګردان هغه څه چې باید زده کړي ، ګوري ئې ، او هم ئې اوري خو بیا هم زده کړه لږه شوې وي .
د دې لپاره چې د شاګردانو سره مو په زده کړه کې مرسته کړې وي نو تاسې باید په هغوی باندې ځیني فعالیتونه ترسره کړي . دا فعالیتونه ، پوښتنو ته ځوابونه ورکول ، د نوټ لیکل ، خپل ملګري او یا ټول صنف ته د یو نظر تشریح کول کیدلی شي . په عملي کار کې فعالیتونه ډیر واضح وي او د دې فعالیتونو ګټه بیا د هماغه چینائي متل په تکرارولو کې خلاصه کیدلی شي چې د لومړۍ برخې په پیل کې وویل شوې و :

« اوریدل - هیرول ، لیدل - یادول او کول - پوهیدل دي »



ځیني فعالیتونه ګټور او ځیني ئې ممکن د وخت ضایع کول وي . یوه لاره ښوونه دا ده چې په فعالیت کې باید شاګردان د خپلو معلوماتو څخه کار واخلي نو دا چې هغه تکرار کړي . د فعاله زده کړې څخه په معلوماتي پاڼو ( هینډ اوټ ) یا کتابونو کې هم کار اخستل کیدلی شي . د دې روش د وضاحت په خاطر ستاسې لپاره لاندې یو تمرین دی چې باید اجراء ئې کړي .

دشاگردانو د امتحانولو لپاره معمول دلایل دا دي چي :

- باید دا وکتل شي چي شاګردان خپل کارونه په بنه توګه ترسره کوي او کړنه. البته دا کار په ټولو روغتیایي کارونو کي خاص اهمیت لري.
- امتحانونه او ټیسټونه شاګردان ډیر کار ته تشویقوي.
- دځیني عناوینو یا مهارتونو دډیري زده کړي لپاره، دامتحان څخه دشاګردانو لپاره دلارښود په توګه هم کار اخستل کیدلی شي.
- امتحان ښوونکي ته دا هم ښودلی شي چي دکورس کومي برخي ښه وي او کومي برخي باید ښه کړای شي.

دیو کورس په دوران کي دیو (ځلي) امتحان له لاري ټول پورتني مقاصد نشي ستر لاسه کیدلی. دمثال په توګه سالانه یا اخري امتحان، بنائي ددي لپاره ښه وي ترڅو وکتل شي چي شاګردان دکار کولو لیاقت لري او کړنه. اما دا امتحان دکورس په دوران کي دشاګردانو د زده کړي لپاره ښه او ګټوره لارښوونه نشي کولی.

نو له دي کبله دا ډیر مهم ده ترڅو فکر وکړي چي تاسي ولي شاګردان د ټیسټ او یا امتحان له لاري امتحانوئ. وروسته له دي نه تاسي دا سي ټیسټ ترتیبولی شي چي دهغي له لاري ستاسي په فکر هغه ډیر مهم کارونه ترسره شي. تاسي تصمیم نیولی شي چي څوک باید امتحان واخلي، امتحان باید کله وي او څنګه پوښتني غواړي چي پکي مطرح کړئ.

## (۵-۲) کوم یو شي امتحان ښه کوي؟

کله چي تاسي دیو کورس او یا یو درس لپاره دامتحان روښونه ترتیبوی، نو باید لاندیني ټکي په نظر کي ونیسی:

الف - ایا امتحان دکورس دمقرراتو سره برابر دی ؟

ب - ایا امتحان د وخت او مواد له نظره اقتصادی دی ؟

ت - ایا امتحان په رښتیا سره مهم لیاقتونه او مهارتونه معلوموي ؟ (صحت)

ث ـ ایا تاسی مطمئن یاستی چی د شاګردانو نمبری صحیح ورکړ شوی؟ (اعتبار).
ج ـ ایا د امتحان له لاری داسی معلومات ترلاسه کیږی چی د شاګردانو د ښه نزده کړی او د ښوونکی د تدریس د ښه کولو په برخه کی مرسته وکړی؟
امتحانونه باید ډیر وخت ونه نیسی. همدا علت دی چی شفاهی امتحانونه او مقالی ډیر زیان لری، ځکه چی دا دواړه میتودونه د ښوونکو ډیر وخت نیسی.

لاندینی دری برخی د پورتنیو دریو دری پوښتنو سره ارتباط لری.

## (۵ ـ ۳) په دی اطمینان حاصلول چی امتحان په رښتیا سره مهم قابلیتونه او مهارتونه معلوموی؛ (صحت)

په ترینګ مرکز کی د دریو امتحانونو څخه وروسته یو مشر ښوونکی وویل: «ما پوښتنو ته ځواب ورکړی شو او نه هغو نورو ښوونکو ورته ځواب وواید چی دا پوښتنی ولیدلی. زه هیڅ پوه نه شوم چی شاګردانو د دی شیانو پوهیدلو ته څه ضرورت درلود».
پورتنی مثال د هغو ښوونځیو لپاره چی روغتیائی کارکونکی روزی یو جدی خط په ګوته کوی. د شاګردانو څخه اکثره وخت د داسی حقایقو په هکله پوښتنی کیږی کوم چی مهمی نه وی.
دا خبره ځکه جدی ده چی شاګردان د دی لپاره چی امتحان ته ښه تیر کړی وی هماغه څه زده کوی کوم چی د هغوی په فکر په امتحان کی راځی.
د دی مسئلی حل دا دی چی باید شاګردان په هغو مهارتونو او لیاقتونو کی امتحان شی کوم چی د ښوونکو په فکر مهم وی.
د یوی موضوع د اهمیت لپاره تاسی د داسی کار په هکله فکر وکړی د کوم سره چی شاګردان په آینده کی مخامخ کیږی، یعنی هغوی باید د کار د اجرا کولو لپاره څه زده کړی.

دمثال په توګه یو روغتیائي سنوونکی امکان لري د حفظ الصحي او یاماشومانو ته دتیم شوودو د ورکولو په برخه کې د میندو تشویقــــــولـــــو کار په غاړه ولري . دغه تشویــــــقول بڅپله یو کار دی . نو له دی امــله امتحان باید دامعلوم کړي چې شاګردان دغه کار په ښه توګه سرته رسولی شي او که نه . که چیری امتحان دا کار معلوم کړي نو دا امتحان د صحت وړ دی .

له بده مرغه ځنی وخت د ټولنی روغتیائي سوپروایزرانو څخه په امتحان کې غوښتنه کیږي چې د مور شوودو اهمیت په هکله مقاله ولیکي .
داپوهه یامعلومات د لازمو مهارتونو یوه وړه برخه ده ، (چې په دی کې د میندو سره دخبرو مهارتونه نه دي شامل ) ، نوله دی امله دا امتحان صحیح نه دی .

دا اسانه خبره ده ترڅو سنوونکوته وویل شي چې د شاګردانو د کارونو د اجراکولو په اساس خپل امتحانونه صحیح کړي ، خود سنوونکو لپاره ډیره ګرانه ده ترڅو امتحانونه داسی ترتیب کړي چې پوره تمنی مقصد ترلاسه کړي . په دی هکله په اتلونکی فصل کې ځنی نظریات ورکړشوي دی .

## (۵ ـ ۴) امتحان داعتبار وړ ګرځول : (اعتبار)

په یو امتحان کې شاګردانو ته ویل شوي وچې
د سوختګی د علاج په هکله څه ولیکي . د امتحان پارچو ته د هماغه سنوونکی له خوا نمري ورکړل شوي چاچې کورس تدریس کړی و . وروسته له دی نه یو بل سنوونکی همدی پارچو ته نمري ورکړي . د دواړو سنوونکو په نمرو کې ډیر فرق و . د مثال په توګه د یو سنوونکی له خوا یو شاګرد ته ۴۵ فیصده (ناکام) نمري ورکړل شوي وي او د بل له خوا هماغه شاګرد ته ۷۰ فیصده .

دامثال ثرګند وي چې په دی امتحان کې د نمرو ورکول د اعتبار وړ نه وو . دا ښکاره خبره ده چې نمري باید د اعتبار وړ وي او که داسی نه وي نو دا به هیڅ معنی ونلري . اماتاسی څنګه اطمینان حاصلولی شئ چې په رښتیا سره یوه نمره داعتبار

وړ ده ؟ د دې پوښتنې ځواب دا دی چه باید هڅه وشي تر څو د امتحان په مراحلو کې غلطی له منځه یوړل شي .

په دې برخه کې تاسې د امتحان لپاره داسې روشونه انتخابولی شئ چې په هغوی کې د غلطیو امکان لږ وي . ( د مثال په توګه د مقالو د لیکلو څخه به ځواب پوښتنې سبې وي ).

همدا رنګه د نمرو ورکولو لپاره د داسې روشونو څخه کار واخلئ چې د ښوونکو سره د یو معیار د نمرو ورکول کې مرسته وکړي ، لکه چیک لست .

د ا روشونه په راتلونکی فصل کې په مفصله توګه تشریح شوي دی .

## (۵ - ۵) د امتحان څخه په زده کړه کې د مرستې په توګه کار اخستل :

کلمنی

امتحانونه کولی شي چې شاګردان ډیر کار ته تشویق او په زده کړه کې هم مرسته وکړي. اما وخت په وخت امتحانونه د دې لپاره ګټور دي ، چې شاګردانو ته دا ښئ چې هغوی د کومې موضوع د زده کړې لپاره نور وخت ته ضرورت لري . په ډیرو کورسونو کې ښوونکي وخت په وخت امتحانونه اخلی او بیا شاګردانو ته د هغوی غلطی وائی. د دې لارې شاګردانو ته د خپلو کارونو په هکله فیډبیک ورکول کیږي او پرمختګ هم کوي .

د پورتنی موضوع د وضاحت لپاره په لاندینی مثال کې د ینځو شاګردانو نتیجې ته وګورئ چې د کورس په دوران کې ترینه څلور ټسیټونه اخستل شوي دی .

---

مثال :

| | لمړی برخه | دویمه برخه | دریمه برخه | څلورمه برخه |
|---|---|---|---|---|
| لمړی شاګرد | ✓ | × | × | ✓ |
| دویم 〃 | ✓ | ✓ | × | ✓ |
| دریم 〃 | ✓ | ✓ | ✓ | ✓ |
| څلورم 〃 | ✓ | ✓ | × | × |
| پنځم 〃 | ✓ | ✓ | × | × |

دا (✓) علامه ښه سوبه څرګندوی او (×) علامه د خرابی سوبی څرګندونه کوی . که تاسی ښوونکي وای نو تاسی به څه کولی ؟

## د امتحان په نتایجو تبصره :

امکان لری د لمړی برخی په هکله خوښ اوسی . د دویمی برخی په هکله تاسی باید لمړی شاګرد ته توصیه وکړی چی د هغه سوبه ښه نه ده . تاسی باید کوشش وکړی ترڅو وخت پیدا او هغه ته دا تشریح کړی چی ولی د هغه کار ښه نه او څرنګه ښه کیدلی شی . که نوموړی شاګرد د زده کړی لپاره وخت ولری، نو دا به ښه وی چی په همدی برخه کی یوواربیا ترینه امتحان واخستل شی .

د دریمی برخی نتیجه څرګندوی چی په دی برخه کی ښه زده کړه نه ده شوی او دا برخه باید بیا تدریس شی . دا برخه ښوونکی ته هم د خپل کار په هکله فیډبیک ورکوی او کیدای شی ښوونکی دا برخه په راتلونکی کال کی په مختلفه طریقه تدریس کړی . په څلورمه برخه کی یوازی دوه شاګردان لارښوونی ته ضرورت لری او ټولو شاګردانو ته به د دی برخی تکرار د وخت ضایع کول وی .

---

که تاسی د پورتنی تبصری ټول پیشنهادونه عملی کړی نو امکان لری چی ډیر وخت مو ونیسی . دا یو مشکل دی، ځکه ښوونکی وکولای شی چی هر یو شاګرد ته په ځانګړی توګه لارښوونه وکړی نو دا به ډیر ګټور کار وی . تاسی باید کوشش وکړی چی وخت

پیدا کړي . په دې برخه کې یو نظر دا کېدلی شي چې د لیکچر لپاره له وخت وتلکی او شاګردان پرېږدي چې په مستقیم ډول د کتابونو، نوټونو او عملي تجاربو څخه زده کړه وکړي.

د یادولو وړ خبره دا ده چې دوامداره یا وخت په وخت امتحانونه او لارښوونې د مهارتونو او پوهې لپاره په مساوي ډول ګټور دي .

## (٥ - ٦) دوامداره امتحان :

په ځینې کورسونو کې د شاګردانو څخه یوازې د کورس په اخر کې امتحان اخستل کېږي او په ځینې نورو کورسونو کې شاګردان په کم او یا ډېر دوامدار شکل د یو سوپروایزر تر څارنې لاندې ساتل کېږي. د دې د وارو حالاتو نه په غیر، په ځینې کورسونو کې امتحانات هره هفته ، هره میاشت او یا درې میاشتنی وروسته اخستل کېږي .

دوامداره امتحان څه ګټې لري ؟

• څرنګه چې په دې کې د امتحانونو شمېر زیات وي نو د یو امتحان د غلطۍ اهمیت څه خاص نه وي، چې له دې امله دوامداره امتحان سم او د اعتبار وړ ښکاري .

• په دوامداره امتحانونو کې یواځې کلنی امتحان په هکله تشویش او فکر له منځه ځي .



"د کلنی امتحان تشویش او فکر . . . . "

څرنګه چې د امتحان د تېرولو انګیزه د کورس په ټول دوران کې موجوده وي، نو له دې کبله شاګردان د دې پر ځای چې یواځې د کلنی امتحان لپاره تیاری ونیسي،

د ټول کورس په دوران کې ډیر کار او کوشش ته پاملرنه کوي.

• که د شاګردانو نتیجه په یو امتحان کې ښه نه وي، نو هغوی کورس د ختمیدلو نه وروسته پوري د خپلو غلطیو د اصطلاح کولو لپاره وخت لري. د وامداره امتحاناتو ښوونکو او شاګردانو ته ډیره لارښوونه کوي.

• شاګردانو ته د کورس په دوران کې ښودل کیږي چې هغوی کوم معیار ته ضرورت لري.

د وامداره امتحان ځینی ضررونه هم لري. د ټولو څخه مهم یې دا دی چې د دوامداره امتحان ترتیبول ډیر کوشش او وخت غواړي.

د وامداره امتحان په څو شکله کیدلی شي. دا د مسلسلو لیکلو ټیسټونو یا په لابراتوار او ساحه کې د شاګردانو د کارونو د لیدلو له لارې ترسره کیدلی شي. د امتحاناتو نمري باید وسائل شي، ترڅو د شاګردانو د ناکامی او کامیابی اندازه معلومه شي، یا هم د نمرو څخه یې د شاګردانو د لارښوونې لپاره کار اخستل کیدلی شي. که د هر سیستم څخه کار واخستل شي، خو د وامداره امتحان د شاګردانو د زده کړې په هکله د صحیح او اعتبار وړ قضاوتونو په برخه کې د ځان سره مهمې ګټې لري.

## (۵ - ۷) د خپل ځان امتحانول:

په دې ډول امتحان کې یو شاګرد په خپله خپل کار امتحانوي. د ځینې ښوونکو سره د دې نظر په هکله داندیښنه دی چې یا خو شاګردان د دې کار مسئول نه دي او یا هم پوره پوهه نلري. کیدای شي د کورس په پیل کې دا نظر صحیح وي. امکان لري ځینې روغتیائي کارکونکي د فارغیدلو څخه وروسته د لرې ځایونو لاندې کار وکړي، نو لازمه ده چې هغوی باید د کار په وخت کې خپل ځان امتحان کړي. له دې امله دا یو ښه نظر دی ترڅو شاګردانو ته د ټرینینګ په دوران کې د خپل ځان د امتحانولو ځینې تجربې ورکړای شي.

دا امتحان باید د امتحان یواځینی روش نه وي ځکه سنبوونکی یا بهرنی امتحان اخستونکی به د کورس په پای کی د شاګردانو د ناکامی او کامیابی د څرنګوالی په هکله تصمیم نیسي، خو د کورس په دوران کی هم د خپل ځان امتحانولو روش څخه کار اخستل کیدلی شي. دا امتحان وخت نه ضایع کوي او شاګردانو د مسئولیت احساس ډیر قوي کوي. په دې امتحان کی شاګردان د لازمه معیار تر لاسه کولو لپاره واضح لارښوونې ته ضرورت لري. هغوی ته باید کار سنبه واضح سشي ، د مثال په توګه تاسی د هغوی څخه پوښتنه کولی شي چې:

۱- د کلیو د عکسونو له مخی د هغوی رونتیائي مشکلات تشخیص کړي.

۲- د مرضونو د راپور فورمی ډکی کړي.

په پورتنیو مثالونو کی یو شاګرد کولی شي چې خپل کار د صحیح ځواب سره مقایسه کړي. وروسته له دې نه هغه پوهیږي چې کار ئې سم او کوم خراب.

د پاملرنې وړ ده چې د لسته نقل کول څه مشکل نه دی، ځکه چه خپل ځان امتحانولو د روش مقصد زده کړه ده، نه په امتحان کی نمري اخستل.

## (۵ - ۸) د شاګردانو په واسطه د یو بل کارونه امتحانول:

د خپل ځان

امتحانولو په څنګ کی د دې میتود څخه هم کار اخستل کیدلی شي. دا هغه امتحان دی په کوم کی چې شاګردان یو بل امتحانوي.

دا مناسبه نه ده چې تر څو د شاګردانو د ناکامی او کامیابی په هکله تصمیم ونیول شي، خو دا میتود د شاګردانو سره په زده کړه کی ډیره مرسته کولی شي.

امکان لري ځینی شاګردان د بل شاګرد څخه وغواړي چې د امتحان لپاره د تکرار په وخت کی د هغه څخه پوښتنه واخلي. د دې ساده نظریې ته سنبوونکی تشویق او لارښوونه کولی شي. د مثال په توګه شاګردانو ته د یو کار کولو لپاره لیکل شوی لارښوونې ورکول کیږي. بیا یو شاګرد هغه کار عملي کوي او دویم شاګرد ورته ګوري او خپل

نظریات وړاندې کوي. د کار په پای کې شاګردان تبدیلیږي، دویم شاګرد کار اجرا کوي او لومړی ئې ګوري.



«بیا یو شاګرد کار د اجرا کولو کوشش کوي ...

ښوونکی باید حتماً د خپلو تجاربو یا د کتاب څخه لیکل شوي لارښوونې ترتیب کړي.

د شاګردانو په پواسطه امتحان کول شي چې د ساحې تجربو د پر معنی او پر مقصده کولو سره مرسته وکړي.

د دې پرځای چې کارونه په نامعلومه توګه وروسته ترسره شوي، نو دا به ښه وي چې شاګردان د یو بل کارونه وګوري او لارښوونه هم ورته وکړي.

(۵ - ۹) لنډیز ؛

د دې فصل د تمرین لپاره د امتحان د روښونو د مثالونو ته چې په بله صفحه کې ورکړل شوي وګورئ. د مثالونو د کتلو څخه وروسته په ۵ - ۲ برخه کې د ذکر شوو لاندېنیو څلورو تکو څخه په استفادې سره خپل نظریات وواياست ؛

- ایاد امتحان د وخت او موادو له نظره اقتصادي دی؟
- ایاد امتحان په ریښتیا مهم لیاقتونه او مهارتونه معلوموي؟ (صحت)
- ایا نمري صحیح دي؟ (اعتبار).
- ایاد امتحان په زده کړه کې مرسته کوي؟

## اوس مثالونو ته وګورئ:

لومړی مثال: د کورس په پای کې د شاګردانو څخه تحریري امتحان اخستل کیږي چې هغوی باید په دریو ساعتونو کې څلور مقالې ولیکي. وروسته له دې نه یو بل ښوونکی چې د دې کورس د ښوونکو څخه نه دی، د هر یو شاګرد څخه د پنځلسو دقیقو په وخت کې د ټول کورس په هکله شفاهي امتحان اخلي.

دویم مثال: د کورس په دوران کې د دوه هفتې وروسته د شاګردانو څخه شل څو ځوابه (MCQ) پوښتنې کیږي. دا پوښتنې د ناروغیو د علایمو، د ناروغیو د وقایې، تداوی د روشونو، او داسې نورو شیانو په هکله دي. شاګردان پارچې ته په خپله نمرې ورکوي او خپل ځوابونه د هغو صحیح ځوابونو سره مقایسه کوي کوم چې ښوونکي ترتیب کړي دي.

دریم مثال: هغه روغتیایي سوپروایزران چې د ټرینینګ لاندې دي د یو با تجربه روغتیایي سوپروایزر سره یوه میاشت کار کوي. (دوه شاګردان د یو سوپروایزر سره کار کوي). دغه شاګردان د ښوونکي تر نظارت لاندې ټول کار په خپله کوي. د میاشتې په اخر کې ښوونکي د شاګردانو په هکله راپور لیکي.
د امتحان د هر یو میتود په هکله خپل نظریات ولیکئ:

نظریات:

| | د وخت له نظره اقتصادي | صحت | اعتبار | په زده کړه کې مرسته کوونکي |
|---|---|---|---|---|
| لومړی مثال | خراب | خراب | خراب | خراب |
| دویم مثال | د لومړي کال نه وروسته ښه دی | د مهمو مهارتونو یادونه نه کوي | ډېر ښه | ښه |
| دریم مثال | خراب | ډېر ښه | اوسط | ښه |

## تمرین :

فرض کړئ چې تاسي شاګردانو ته د یو مریض د تبې د حرارت د معلومولو په هکله درس ورکوئ . د دې کار د څرنګوالي د تشریح کولو نه وروسته به کوم یو د لاندینیو فعالیتونو څخه دیر ګټور وي .

الف : په کتاب کې د حرارت د معلومولو د درجې لوستل .

ب : د تختې څخه ستاسي د نوټ لیکل .

ت : په خپلو الفاظو د حرارت د معلومولو په هکله نوټ ترتیبول .

ث : په یوه پاڼه کې د پنځو ترمامیترونو د حرارت د درجو لیکل .

ج : د ترمامیتر په واسطه د یو بل ملګري د حرارت د درجې معلومول .

ح : د ترمامیتر د سیما بو د حجم محاسبه کول ، کله چې د حرارت درجه د $10^{\circ}$ څخه $40^{\circ}$ ته تغییر وکړي .

همدا اوس خپل ځوابونه سره دد لاندې ولیکئ .

---

---

## د تمرین په هکله تبصره :

د (ح) برخې فعالیت څخه پرته ، نور ټول فعالیتونه د هغه څخه چې هیڅ فعالیت نه وي ښه دی . د ورکړ شوو فعالیتونو د جملې څخه د (ج) فعالیت د ټولونه ښه دی ، ځکه شاګرد باید ستاسي له خوا د ورکړ شوو معلوماتو نه کار واخلي . هغه باید ترمامیتر ولولي او د انتي سیپټیک (ضد عفوني) روش څخه دې هم کار واخلي ، ترمامیتر ته دې تکان ورکړي چې سیماب ئې لاندې لاړ شي او هغه دې په سمه توګه د ژبې لاندې کیږدي .

د (ث) فعالیت هم ګټور دی ځکه ځنې شاګردان ممکن د درجو په لوستلو کې مشکلات ولري . دا به ښه وي چې د هغو شاګردانو په پیدا کولو کې مرسته وکړئ کوم چې نورې مرستې ته هم ضرورت لري .

لومړی مثال :

دا روش په ټولو مواردو کی خراب دی . په دی روش کی، مقالوا وشفاهی امتحان ته نمری ورکول ډیر وخت غواړی . شاګردان دکورس څخه وروسته د مقالو لیکلو اوخارجی امتحان اخستو نکی سره خبرو کولو ته ضرورت نلری ، نو څکه دغه مهارتونه مهم نه دی . مقالوا وشفاهی امتحان ته نمری ورکول اکثره وخت داعتبار وړ نه وی . دا امتحان ډیر وروستی وی او شاګردان ددی امتحان څخه سندزده کړه نشی کولای .

دوهم مثال :

دڅوځوابه پوښتنو ترتیبول ډیر وخت غواړی خو ددی پوښتنو څخه په لږ تغییر سره د یو کال نه بل کال ته هم استفاده کیدلی شی او نمری هم په چټکی سره ورکول کیږی . امکان لری دا روش مهم مهارتونه معلوم کړی ـــ دا روش په هغو پوښتنو او کار ونو متکی دی دکومو لپاره چی شاګردان ته تریننګ لاندی دی . څرنګه چی څوځوابه پوښتنی معمولاً پوهه معلوموی ، نو امکان لری ډیر هغه مهم مهارتونه معلوم نکړی کوم چی باید امتحان شی .

ددی روش داعتبار برخه ډیره ښه ده او په نمرو ورکولو کی ئی باید لږه غلطی وی . شاګردان کولای شی چی د نورو شاګردانو ته د نمرو ورکولو او د هغوی دغلطیو دلیدلو له لاری زده کړه وکړی . دپاملرنی وړ ده چی دا روش یوازی د پوهی په زده کړه کی مرسته کوی .

دریم مثال :

څرنګه چی په دی روش کی هر یو سوپروایزر باید خپل راپور ولیکی نو دا روش ډیر وخت غواړی . همدارنګه په دی روش کی ټول مهم مهارتونه امتحانیږی ددی روش داعتبار برخه ددی لپاره ضعیفه ښکاری چی د سوپروایزرانو سویه مختلفه ده . دا امتحان باید په زده کړه کی په مؤثره توګه مرسته وکړی .

---

دپورتنیو مثالونو څخه معلومیږی چی هر یو روش ځنی نقایص هم

لري . ښوونکي بايد ددې مشکلاتو نه خبروي او هڅه وکړي چې د امکان ترحده دغه مشکلات کم کړي . په بل فصل کې د امتحان دمختلفو روشونو په هکله خاصې لارښوونې شوې دي .

---

## شپږم فصل : د امتحان روشونه :

په مخکيني فصل کې د عمومي مسايلو په هکله خبرې وشوې او وويل شو چې ښه امتحان بايد اقتصادي وي، اعتبار او صحت ولري او د ښوونکي او شاګرد لپاره ګټور وي . دا برخه هغه خاص روشونه تشريح کوي، کوم چې د ښوونکي سره د امتحان په ښه کولو کې مرسته کوي . د هر يو روش په هکله بېلګې او نظريات وړاندې شي .

## (٦ - ١) تقريري امتحانات :

په تقريري امتحان کې د شاګرد څخه يو يا دوه ښوونکي پوښتنې کوي . دا پوښتنې معمولاً د ځينې عناوينو او يا د شاګرد د آينده کار د حالاتو په هکله وي .

تقريري امتحان ځينې ګټې هم لري . امتحان اخستونکي کولی شي د مربوط موضوعاتو په هکله مفصل معلومات وغواړي او د شاګرد د پوهې اندازه معلومه کړي . بايد وويل شي چې دا روش د ډير رضايت وړ نه دی . که څه هم په دې روش کې امتحان اخستونکي هڅه کوي چې سلوک ئې ډير دوستانه وي خو بيا هم اکثره وخت شاګردان وارخطا کيږي . دا يو بې ځايه فشار دی چې په شاګردانو وارديږي او د شاګرد د آينده وظيفې د کار د فشارونو سره ډير زيات توپير لري . په نتيجه کې شاګردانو ته هغو نمرې نه ورکول کيږي چې څومره مستحق وي .

شفاهي امتحانونه ډير وخت نيسي او اکثرًا پرې انتقاد

کیږي چې نمرې ئې د اعتبار وړ نه وي . همدا رنګه دغه روش مهم مهارتونه ډیر لږ امتحانوي او معمولاً په زده کړه کې مرسته نه کوي. له دې امله تاسې باید د تقریري امتحان څخه تر هغه وخته کار وانه خلی ترڅو چې یو خاص او قوي دلیل ونلرې .

(۶ - ۲) مقالې :

دمقالو څخه په صحي مسلکونو کې د شاګردانو دامتحانولو لپاره په پراخه اندازه کار اخستل کیږي، خو دا میتود ډیر خطرناک ضررونه لري .

په یو کورس کې د شاګردانو څخه پوښتنه شوې وه چې د " پولیو د معافیت " په هکله مقاله ولیکي . که څه هم د مقالې عنوان د کورس سره ارتباط درلود خو دا امتحان ګمراه نه و. ځکه چې د پولیو د معافیت مسئله د شاګردانو د کار نیوه برخه وه ).

دا امتحان ددې امله ضعیفه دی چې :

● شاګردان به و نه پوهیږي چې ښوونکې څه غواړي. آیا هغوی باید د معافیت د پروګرام عملي کول تشریح کړي؟ ایا هغوی باید دا ولیکي چې څرنګه معافیت د پولیو مخنیوی کوي؟ ایا هغوی باید ددې واکسین مضر اثرات ولیکي، یا داسې نور .

● په دې روش کې د نمرو ورکول هم د اعتبار وړ نه ښکاري . د دې علت دا دی چې موضوع صحیح نه ده مشخص شوې . مختلفو ښوونکو ته به مختلفې برخې مهمې ښکاري او په نتیجه کې به مختلفې نمرې ورکوي . دا چې شاګرد کامیا بیږي او که نه، د هغه ښوونکي پورې اړه لري څوک چې پاره چوته نمرې ورکوي .

● دا امتحان صحیح نه دی ځکه چې شاګردان د خپل کار په وخت د مقالو لیکلو ته ضرورت نلري . هغوی به خلکو ته د معافیت واکسین کوي، نو له دې امله دا به ډیره ښه وي ترڅو مهم مهارتونه امتحان شي .

• کم سنبوونکی په مکمله توګه مقالوته نمری ورکړي، نو دا کار به ډیر وخت غواړي.
• ددی امتحان له لاری امکان لری شاګردان سبنه نزده کړه ونشی کولی.

## دمقالو لیکل څرنګه سبنه کیدلی شی؟

لومړی خبره دا ده چی دا به سبنه وی ترڅو دامتحان دهغو مختلفو برو ښوونو څخه کار واخستل شی چی په وروستیو فصلونو کی توضیح شوی دی.

همدا رنګه که غواړی چی د مقالو څخه کار واخلی، نو باید لاندی ټکوته پاملرنه وکړی؛

۱- عنوان مشخص کړی - دمثال په توګه؛

« واضح کړی چی تاسی به میندوته څنګه تشریح کوی چی ولی باید د هغوی ماشومان دپولیو په مقابل کی واکسین شی » .

یا

« دا تشریح کړی چی د پولیو واکسین باید څرنګه انتقال ـــ او بیا ماشومانوته ورکړل شی ».

د مقالو پوښتني عناوین ډیر واضح دی او شاګردان پوهیږی چی څه باید ولیکی. دا پوښتنی صحیح هم دی ، ځکه چی په دی کی د شاګردانو څخه د مهمو مهارتونو په هکله هم پوښتنی شوی دی .

۲ - د نمرو ورکولو یوسیستم ترتیب او تعقیب کړه . په دی سیستم کی باید دهغو مهمو ټکولست موجود وی چی باید په مقاله کی ولیکل شی . همدا رنګه دبیلابیلو برخو لپاره، لکه دصحیح املاء د مضمون وضاحت او داسی نورو په هکله هم باید په دی سیستم کی د نمرو اندازه معلومه وی . ټول هغه سبنوونکي چی مقالوته نمری ورکوی باید ددی سیستم څخه کار واخلی . دا دامتحان اعتبار هم زیاتوی .

۳ - دامتحان څخه وروسته دا سیستم شاګردانوته وسبنی او ورسره بحث پری وکړی . دا کار په زده کړه کی مرسته کوي .

## (٦-٣) لنډځوابه پوښتنې :

د ارزونې ښوونکو ته وخت ورکوي

چې د کورس د ډېرې برخې په هکله پوښتنې وکړي ، او هغې ته صحيح او په چټکۍ

سره نمرې ورکړي .

---

## د لنډ ځوابه پوښتنو مثال :

لاندېنۍ پوښتنې د ټولنې د روغتيائي

سوپروايزرانو د امتحان ځينې برخې وي :

١- يوې کورنۍ ته د خځلو د مينځه وړلو څلور ګټې بيان کړې .

(١)

(٢)

(٣)

(٤)

٢- داسې ډيا ګرام رسم کړې چې په يو کلي کې د ساده او مناسب خاکندانز

جوړښت ټکي ښودل شوي وي .

٣- دوه داسې حالات بيان کړې چې په هغې کې دا وښودل شي چې د خاشاکو يا خځلو

خښول د سيزلو څخه ښه دي .

(١)

(٢)

د لنډو ځوابو په پوښتنو کې اکثره وخت شاګردانو ته ويل کيږي چې ځينې

ليستونه ترتيب کړي ، ديوې موضوع دوه ګټې بيان کړي او يا هم يو ډيا ګرام رسم

کړي . څرنګه چې د اکاروند ډېر مشخص دي ، نو نمرې ورکول کيږي

او د اعتبار وړ هم دي . دغه ډول پوښتنو ته ځواب هم ژر ورکول کيږي

چې په دې اساس د امتحان په وخت کې د مقالې د لیکلو په نسبت، ډیرو موضوعاتو ته ځواب درکول کیدلی شي.

په دې برخه کې یولوی نقص دا دی چې دغه راز پوښتنې شاګردان یوازې د حقایقو یا د ساتلو ته تشویقوي، نه دا چې د پوهې یا مهارتونو څخه کار واخلي.

## (۶ - ۴) څو ځوابه پوښتنې:

څو ځوابه پوښتنو ته اکثره وخت (MCQ) ویل کیږي. دا روش د لنډ ځواب په پوښتنو د روش څخه یوه مرحله مخکې دی، ځکه په دې میتود کې شاګردان لیکلو ته ضرورت نلري او یوازې سمه یا صحیح ځواب انتخابوي.

---

د ډیرو ځوابونو څخه د یو ځواب د انتخابولو مثال:

دلاندې ناروغیو د جملې څخه کومه

یوه ناروغي د واکسین په واسطه نشي وقایه کیدلی؟

الف: پولیو (فالج)

ب - میزلس (شرې)

ت - ټي بي (نرۍ رنځ)

ث - شنه ټوخله

ج - اسهال

---

په پورتني مثال کې باید شاګردان د ډیرو ځوابونو د جملې څخه یو صحیح ځواب وټاکي، چې په دې مثال کې (ج) صحیح ځواب دی.

که څه هم ممکنه ده چې د څلورو یا شپږو ځوابونو پوښتنې ترتیب شي،

خو ځینې ځوابه پوښتنې د ټولو ته ښه او مناسبې دي. څو ځوابه پوښتنې یو بل ډول هم لري چې هغې ته صحیح یا غلط ډول وائي. د دې ډول پوښتنو مثال - سوء تغذیه:

| | | |
| --- | --- | --- |
| الف - د ماشومانو صحت لپاره خطرناک دی. | صحیح | غلط |
| ب - د مکروبونو په واسطه پیدا کیږي. | 〃 | 〃 |
| ت - د لویانو په نسبت په ماشومانو کې ډیره معموله ده. | 〃 | 〃 |
| ث - اکثره وخت د اسهال سره تړلی وي. | 〃 | 〃 |
| ج - د دوا په واسطه ئې مخنیوی کیدلی شي. | 〃 | 〃 |

دلته د جملې په پیل کې یوه موضوع ورکړه شوې، چې په دې مثال کې ډیره لنډه ده لکه « سوء تغذیه ... »

د دې موضوع څخه وروسته څو جملې ورکړه شوې. شاګردان باید دهرې جملې په هکله تصمیم ونیسي چې هغه صحیح ده او که غلط. څرنګه چې الف برخه غلط ده نو شاګردان باید د «غلط» کلمې څخه دایره چاپیره کړي. د ب برخه هم غلط ده، خو وروسته د ت او ث برخې صحیح دي او ج برخه بیا غلط ده.
په دې صورت کې باید شاګردان دلومړي دوه غلطو کلمو، وروسته د دوه صحیح کلمو او په پای کې د یوې غلطې کلمې څخه دایرې چاپیرې کړي.

د مخکې ذکر شوو دوو طریقو څخه په پراخه اندازه کار اخستل کیږي، خو د صحیح او غلط طریقې د ترجیح لپاره هم ځینې دلایل شته.

ایا څو ځوابه پوښتنې ښه دي او که نه؟
دغه راز پوښتنو ته ډیر زر او په صحیح توګه نمرې ورکول کیږي چې په دې اساس په یوه امتحان کې ډیرې پوښتنې مطرح کیږي او په نتیجه کې د کورس زیاته برخه پکې شاملیږي.
له بلې خوا نه په دې برخه کې ځینې نواقص هم لیدل کیږي. دا ډیر ګرانه

ده ترڅو پوښتنې په واضح توګه ولیکل شي، چې دا کار ډیر وخت غواړي. سربیره پر دې، د دې ډول پوښتنو یو بل نقص دا دی چې یواځې پوهه امتحانوي او د تصمیم نیولو مهارت ډیر لږ معلوموي. دا روش نشي کولی چې د افهام او تفهیم یا د طرز العملونو د اجرا کولو قابلیت معلوم کړي. له دې امله څو ځوابه پوښتنې ستاسي د کورس لپاره د صحت وړ نه ښکاري.

برسیره په پورتنیو نواقصو، دغه ډول پوښتنې ستاسي د کورس د امتحان د نورو روښیشونو په څواکې یوه ګټوره طریقه هم کیدلی شي. د دې طریقې په واسطه د کورس په جریان کې پوهه معلومیږي، او د خپل ځان د امتحانولو سره هم ډیره مرسته کوي.

که غواړئ چې د دې طریقې څخه کار واخلئ نو لاندیني لارښوونې تاسي سره مرسته کولی شي:

• په هر امتحان کې د صحیح او غلط سوالونو د هر سوال لپاره باید دوه دقیقې وخت ورکړئ، چې په دې صورت کې به شاګردان په یو ساعت کې دیرش پوښتنو ته ځواب ورکړای شي. که تاسي ګورئ چې شاګردان په ټاکلي وخت کې امتحان نشي خلاصولی نو سوالونه کم کړئ، ځکه دا مسابقه نده.

• دا به ښه وي چې په دې طریقه کې د یو صحیح ځواب لپاره یوه نمره ورکړای شي. که ځواب ئې نه وي ورکړی، نو صفر، او که ځواب غلط وي نو د هر یو غلط ځواب په سر یوه نمره کمه کړای شي. په هغه بل میتود کې چې د پنځو ځوابونو څخه یو ځواب انتخابیږي د همدې طریقې څخه کار واخلئ خو په دې برخه کې د غلط ځواب لپاره د نمرو کمولو ضرورت نشته.

• په څو ځوابه پوښتنو کې باید د «کامیابۍ» د نمرو معیار لوړ وي. د دې دلیل دا دی چې دغه راز پوښتنې هغه اساسي پوهه معلوموي چې باید ټول شاګردان پرې وپوهیږي. نو له دې کبله د کامیابۍ معیار باید ۸۰ یا ۹۰ فیصده وټاکل شي. دا به ښه وي که د کامیابۍ لوړ معیار لپاره اسانې پوښتنې مطرح شي، نه دا چې پوښتنې سختې او معیار ټیټ وي لکه ۵۰ یا ۶۰ فیصده.

• که د شاګردانو د ځوابونو لپاره د بیلی پاڼی څخه کار واخستل شی نو د نمرو ورکول به ډیر اسان وی .

## (٦ - ٥) د ناروغ د تدابیرو مشکلات :

د ناروغ د تدابیرو مشکلات ، د لنډو ځوابو پوښتنو په څخ تسلسلی شکل دی . ددی موضوع اساسی ټکی دا دی چی دیو ربښتنی شکل په هکله څو مسلسلی پوښتنی کیږی . که څه هم دی ته د ناروغ د تدابیرو مشکلات ویل کیږی ، خو دا په ډیرو نورو مواردو کی هم استعمالیدلی شی . په حقیقت کی ددی موضوع څخه په هغه ځای کی کار اخستل کیږی چیرته چی شاګردانو ته د تصمیم نیولو په برخه کی ترینینګ ورکول کیږی . نو له دی امله دا د هغو شاګردانو د امتحانولو لپاره ډیر ګټور دی کوم چی د صحی سنوونکو، تولنی روغتیائی کارکونکو ، د تولنی زسانو او داسی نورو برخو لپاره روزل کیږی

---

دیو ناروغ د تدابیرو د مشکلاتو په هکله مثال :

میرمن A روغتیائی مرکز

ته راځی او تاسی ته وائی چی هغه هروخت د ستومانی احساس کوی. هغه د تقویې شربت غواړی . تاسی ګوری چی د هغی عمر دیرش کاله دی او پنځو میاشتو حامله ده .

١- دری هغه عوامل ولیکی چی د ستومانی سبب ګرځی .

٢- دوه داسی پوښتنی ولیکی کومی چی به تاسی د میرمن A څخه کوی .

٣- د میرمنی A د ځوابونو څخه وروسته تاسی فکر کوی چی هغه د وینی په کم والی اخته ده . اوس به تاسی د ناروغی په هکله کوم علایم لټوی .

٤- د مریض د معاینی څخه وروسته معلومیږی چی ستاسی تشخیص صحیح دی . وروسته له دی څخه به تاسی څه دوا (که لازمه وی) او څه مشوره ورکوی.

---

پورتنی مثال دلنډ ځواب پوښتنو په څیر ګڼلی لری . موضوع ټولو شاګردانو ته واضح ده او د نمرو ورکول به ئی هم نږدې او د اعتبار وړ وی ( په دی شرط چی ټول مسؤل ښوونکي د ستوماني په ممکنه سببونو سره موافق وی ).

د دی ځخه د صحیح امتحان په توګه هم کار اخستل کیدلی شی ، ځکه چی دا د هغو کارونو سره ارتباط لری دکوم لپاره چی شاګردان روزل شوی دی . ( دا به ډیره ښه وای که هر یو شاګرد میرمن A سره کتلی وای ، د هغی ځخه ئی پوښتنی کړی او هم ئی معاینه کړی وای ) . که شاګردانو ته دامتحان ځخه وروسته د نمرو ورکولو سیستم ورکړ شی نو شاګردان به وشی کولی چی د هغی ځخه هم زده کړه وکړی.

## د ناروغ د تدابیر و مشکلات څرنګه لیکلی شی ؟

دا به ډیره اسانه وی که تاسی مشکلات د ځینی هغو واقعی پیښو په اساس ترتیب کړی دکومو په هکله چی تاسی پوهیږی . د مثال په توګه ، یو هلک ئی د معدی د سخت درد له امله تاسی ته راوړی وی هغه دکاندارچی د صحی کارکوونکی دځو وار ی ورتګ ځخه وروسته ئی بیا هم د دکان مواد پاک نه وو ساتلی هغه مور چی د تغذیی په هکله ئی هیڅ خبره نه منله ، که څه هم ماشومان ئی په سؤ تغذیه اخته وو . که تاسی مکمل وخت درس ورکړی بیا هم کولی شی چی د صحی کارکوونکی سره خبری وکړی ، او یا به دا سینه وی چی د صحی کارکوونکی سره نیمه ورځ تیره کړی تر څو د ځینی پیښو مثالونه ولیکی.

بله مرحله دا ده چی یوه پیښه باید په څو مراحلو تقسیم شی . لکه ، لومړی څه پیښه شو؟ څه تصامیم باید نیول شوی وای ؟ د پیښی لپاره نوری څه لاری موجودی وی؟ وروسته له دی نه تاسی باید تصمیم ونیسی چی شاګردانو ته کوم معلومات ورکړی ، او دکومو معلوماتو په هکله د هغوی ځخه پوښتنی وکړی .

په دی مرحله کی چی تاسی د ناروغ د تدابیر و مشکل مکمل کړی ، نو تاسی باید د دی مشکل لپاره د نمرو ورکولو سیستم جوړ کړی . ټولی هغه پوښتنی ولیکی کوموته چی شاګردان باید ځواب ورکړی یعنی غلطی او صحیح دواړه او بیا د نمرو ورکولو په هکله تصمیم ونیسی.

د (ت) برخي فعاليت د (ب) له برخې څخه سنه دی ځکه چې شاګردان د دې پرځای چې ليکل شوي شيان تکي په تکي کاپي کړي، هغه الفاظ چې هغوی اوريدلي يا لوستلي وي په خپلو الفاظو کې ليکي.

د (الف) برخې فعاليت هم بد نه دی، تر څو د کتاب هغه مشکلې برخې چې شاګرد پرې پوهيدلي نه وي ورته تشريح شي.

د (ج) فعاليت تقريباً د وخت ضايع کول دي، ځکه شاګردان به په خپل راتلونکي کار کې د غه راز محاسبې ته ضرورت ونلري او امکان لري چې د شاګردانو افکار مشوش کړي.

تاسي د ټولو فعاليتونو څخه کارمراخلي ځکه ځنې به يې ممکن نه وي لکه د زيا تو ترما سيټرونو براړول؟ تاسي بايد يوا و يا څو هغه فعاليتونه انتخاب کړي کوم چې ستاسي په فکر د شاګردانو د سبه زده کړې لپاره ګټور وي.

---

د مختلفو مقاصدو لپاره بيلابيل ګټور فعاليتونه شته، د مثال په توګه خپلو شاګردانو لپاره داسي پروژه ورته انکشاف ورکړي، چې هغوی پکې د روغتيائي اړتيا وپه هکله معلومات راغونډ کړي. داسي رول پلي ترتيب کړئ چې شاګردان پکې د هغو خلکو کردار اجراء کړي، چې په راتلونکي وخت کې د خپل کار په جريان کې ور سره مخامخ کيږي. تاسي د شاګردانو د يو ګروپ څخه پوښتنه وکړي چې هغوی په خپله ټولنه کې پورو غتيائي مسئله څنګه حل کولی شي. دا روښونه به تاسي لپاره د ډير کار سبب وګرځي. همدا رنګه د روښونو په هکله به په ورستيو اتم، نهم او لسم فصلونو کې مفصل تشريحات ورکړل شي او هم بد د دې روښونو څخه مؤثره کار اخستل، د سبه زده کړې لپاره لاره برابره کړي.

په ياد ولرئ چې د دې کتاب لوستل تاسي ته ځني تمرينونه درکوي چې بايد اجرائې کړي. په دې اساس دا کتاب د فعاله زده کړي د روښونو څخه کار اخلي. څه فکر کوئ چې تمرينونه تاسي سره په زده کړه کې مرسته کولی شي؟

---

## (٦ - ٦) د پروژې راپورونه :

په ځینې کورسونو کې شاګردانو ته ویل کیږي چې په یوه پروژه کار وکړي . دا پروژې امکان لري ، د یوې ټولني سروې وي او یا د یو روغتیائي ساتني ټیم سره د څو هفتو کار ..... یا داسې نور ... اکثره وخت شاګردان باید د پروژې په هکله راپور ولیکي چې امکان لري دا ډیر وخت ونیسي . طبیعي خبره ده چې شاګردان به د پروژې د کار سره ډیره مینه ښکاره کړي، که دهغوی راپورونه امتحان شي او نمرې ئې د کلني یا وروستي امتحان په نمرو کې وشمیرل شي .

همدا رنګه د پروژې راپورونو ته په ښه توګه نمرې ورکول ګران کار دی، ځکه چې په دې برخه کې کوم واضح معیار وجود نلري . امکان لري ځنې شاګردان ډیر ښه کار وکړي خو راپور ئې ښه نه وي . د ځنې شاګردانو کار به ښه نه وي ، خو راپور به ئې مکمل او واضح وي . داچې کوم یو راپور ښه او معیار ئې د منلو وړ دی — امکان لري ځنې لاندینی لارښوونې تاسې سره مرسته وکړي :

۱ - د پروژې کارونو ته باید کم تر کمه دوو ښوونکو له خوا په بیلابیله توګه نمرې ورکړای شي . وروسته له دې نه باید دواړه نمرې مقایسه شي او د بحث نه وروسته وروستیو اخري معیار وټاکل شي .

۲ - که امکان ولري شاګردانو ته تشریح کړي چې هغوی کوم معیار ته ضرورت لري . داهم ورته ووایئ چې یوه ښه پروژه څنګه وي . د امکان په صورت کې ورته تشریح کړي چې څومره معلومات باید راټول شي ، څومره پیسې باید وکټل شي او کوم ډول ګرافونه بر ګټور وي . همدا رنګه یا ملرنه وکړي چې باید په شاګردانو ډیر قیودات تحمیل نه کړي .

۳ - شاګردانو ته وخت ورکړي تر څو د تیرو کلونو د پروژو هغه کارونه وګوري کوم چې ستاسې په فکر ښه او خرابي برخې لري او خپل دلایل ورته ووایئ . البته دا کار تاسې د اول ځل لپاره د پروژو په کارونو کې نشي کولی ، نو له دې امله د لومړیو پروژو نمرې باید په وروستي امتحان کې حساب نشي .

څرګنده خبره ده چې په امتحان کې د پروژې کارونه د ښوونکي لپاره څه مشکلات پیدا

کړي . د دې کارونو ارزښت څه دی؟ د پروژې راپورونو ته نمرې ورکول ډېر وخت غواړي او امکان لري نمرې ئې د اعتبار وړ نه وي .

که داسې پروژې انتخاب شي چې د هغوی پواسطه د شاګردانو مهم مهارتونه معلومیږي ، نو دا به ډېر لوړ صحت ولري . همدا رنګه د پروژو کارونه د زړه کړي لپاره سند او قوي تجربې برابروي او د دې لپاره چې شاګردان لا زیات فعالیت ته تشویق شي نو د پروژو کارونه باید امتحان شي .

## (۶-۷) چک لستونه :

چک لستونه د امتحان څه خاص میتود نه دی بلکه د نورو امتحاناتو په خاصه توګه د عملي یا کلنیکي امتحاناتو د سند کولو په توګه ترینه کار اخستل کیږي . په عملي او کلنیکي امتحانونو هر وخت اعتراض کیدلی شي ، ځکه چې نمرې ئې د اعتبار وړ نه وي . همدا رنګه مختلف سنوونکي د مختلفو معیارونو څخه کار اخلي . چک لستونه د غه مشکل کموي او اطمینان حاصلیږي چې د دې لارې د شاګردانو مهارتونه امتحانیږي .

**مثال : یو پنځه کلن ماشوم ته لړی .**

د تبې د سړولو طریقه تمثیل کړي .

۱- په طشت کې اوبه اچول .

۲- په طشت کې د ماشوم کینول

۳- د پښو له خوا نه د سر پورې په ماشوم ورو ورو اوبه اچول

٤- دې کار ته تر هغه وخته پورې ادامه ورکول ترڅو تبه سړه شي .

٥- په وخت یوه قاشوغه پاراسیتامول شربت ، د ورځې څلور ځله ورکول .

٦- ډاکټر ته د ماشوم لیږل .

| هغه څه چې صحیح وشو یا هیڅ ونه شو | هغه څه چې غلط وشو |
|---|---|
| | |
| | |
| | |
| | |
| | |
| | |
| | |

## (۸-٦) دکورس په دوران کی امتحان :

امکان لری د ټرینګ په دوران کی

ستاسی شاګردان په د سپنسری یا روغتیائی مرکز کی څه وخت کار وکړي. په دی کارونو کی به هغوی دا فهام او تفهیم او عملی مهارتونو څخه کار اخلی . د دغه وخت څخه د امتحان او د تدریس لپاره کار اخستل کیدلی شی . امکان لری په دی برخه کی یوائینی لوی مشکل دا وی چی سنبوونکی باید د مختلفو خلکو له خوا طرحه شوو امتحانونو پابندی متکی او وسی. دا ډیره ګرانه دی ترڅو ویل شی چی د مختلفو خلکو معیار و سره یو شان دی . د دی لپاره چی په دی برخه کی مرسته شوی وی د چک لستونو څخه کار اخستل کیدلی شی . خو په دی حالت کی چک لستونه باید ډیر مفصل نه وی .

---

مثال :- په روغتیائی مرکز کی د شاګردانو د امتحانونو چک لست .

| | په مکمله توګه د رضایت وړ دی | لږ څه سند دی | سند نه دی |
|---|---|---|---|
| ۱ - د مریضانو صحیح او مکمل سوابق ساتی . | | | |
| ۲ - د تعقیم مراحلو ته پاملرنه کوی . | | | |
| ۳ - د مریضانو سره سنه روابط ټینګوی . او داسی نور | | | |

د دی لپاره چی په سبکاره توګه معلوم شی چی شاګردان کوم کارونه کولی شی او کوم نشی کولی ، نو هغه نرسان او روغتیائی کارکونکی چی د شاګردانو د سوپرویژن کار په غاړه لری کولی شی د پورتنی ډول فارمونو څخه کار واخلی .

**د دی معلوماتو څخه په استفاده سره سبونکی کولی شی :**

۱- د شاګردانو د کامیابی یا ناکامی په هکله تصمیم ونیسی .

۲- شاګردانو ته د لازمه زده کړې په هکله خاصی مشوری ورکړی .

۳- دکورس د ضعیفو نقاطو د سمه کولو کوشش وکړی .

دغه راز مختصر چیک لست د کار د تجربی په اساس جوړیدل شی .

دچک لستونو څخه د طرز العملونو د امتحانولو په برخه کی هم کار اخستل کیدلے شی .

---

مثال :- د طرز العملونو دکتلو لپاره چک لست .

| | | |
|---|---|---|
| ۱- ډیر علاقمند کارکونکی دی . | ⊢┼┼┼┼┼┼⊣ | هغومره لږ کارکوی چی څومره کولی شی . |
| ۲- په ډیری علاقی سره لارښوونی | ⊢┼┼┼┼┼┼⊣ | لارښوونو ته پاملرنه نه کوی. منی . |
| ۳- د ناروغانو سره ډیره مینه | ⊢┼┼┼┼┼┼⊣ | : ناروغانو سره مینه نلری . سبکاره کوی . |
| ٤- د زده کړی سره هر وخت | ⊢┼┼┼┼┼┼⊣ | د زده کړی سره مینه نلری . ډیره مینه لری . |
| ۵- هر وخت په خپل وخت | ⊢┼┼┼┼┼┼⊣ | هر وخت نا وخته راځی . راځی . |

د دې چک لست څخه د صحي سوپروايزرانو د ټرېننګ لپاره هم کار اخستل کېدلی شي . د درس په پای کې ښوونکی کولی شي ترڅو وپوهيږي چې صحي سوپروايزر د درس په جريان کې په کومه طريقه کارونه اجرا کړي دي .

د مثال په توګه يو صحي سوپروايزر امکان لري په دېرې علاقې سره هغه کار اجراء کړي کوم چې ورته سپارل کيږي ، خود اضافي کار سره مينه ونلري . په داسې حالت کې ښوونکی بايد د خط په منځ کې د ( × ) علامه نوټ کړي .

لکه :

۱ - ډېر علاقه مند کارکوونکی دی |—|—|—×—|—|—| هغومره لږ کار کوي چې څومره کولی شي .

د دې لارې ښوونکی کولی شي چې د صحي سوپروايزر د طرز العملونو ، چټک او واضح لنډيز هغه مشر ښوونکی ته ورکړي څوک چې د کورس مسئوليت په غاړه لري . همدارنګه د دغه راز چک لست څخه د سوپروايزر د لارښوونې لپاره هم کار اخستل کېدلی شي . د دغه چک لست د سوابقو يوه برخه هم تشکيلوي چې د هغې په اساس دا تصميم نيول کېدلی شي چې ايا صحي سوپروايزر به کورس په بريالیتوب سره تر سره کړي .

## (٦ - ٩) نتیجه گیری :

دامتحان یو میتود هم مکمل نه دی . هر یو میتود ځینی گمتی او ضرورونه لری . له دی امله ښوونکی باید دامکان په صورت کی دمختلفو میتودو نه څخه کار واخلی .

ښه به داوی چی ښوونکی لومړی دهغو مهارتونو په هکله تصمیم ونیسی کوم چی باید امتحان شی . البته واضح خبره ده چی دغه مهارتونه دکورس اهداف تشکیلوی .

وروسته له دی نه ددغو مهارتونو دامتحانولو لپاره باید ښه او مناسب میتود انتخاب شی . هر یو میتود باید دلاندنیو ټکو په اساس انتخاب شی :

١ - دکورس مقررات

٢ - دوخت اقتصاد

٣ - صحت یا Validity

٤ - اعتبار

٥ - درزده کړی وسیله

## لنډیز ؛

دا ډېر ښوونکي لپاره اسانه ده چې په درسي ساعت کې خبرې وکړي، خو دا کار د شاګردانو سره په زده کړه کې مرسته نشي کولی. بلکه په ځای ښوونکي باید د هغو فعالیتونو په هکله فکر وکړي ترڅو شاګردان مجبور شي چې تدریس شوي معلومات عملاً په کار واچوي.
څومره فعالیتونه چې امکان لري ترېنه کار واخلي، ترڅو د شاګردانو سره په زده کړه کې مرسته وکړي.
یوازې خبرې مه کوی، بلکه خپله شاګردان په کار واچوي.

## ۱-۴ د فیډبیک ورکول؛

فیډبیک په ننني ښوونه او روزنه کې معموله کلمه ده. د دې معنی څه ده؟ په ساده ډول داسې ویلی شو کله چې شاګردان یو کار ترسره کوي نو ښوونکي باید یو ځل بیا تشریح کړي چې دا کار ښه شوی و او که نه. ښوونکي باید د شاګرد ضعیفې نقطې په ښکاره ډول په ګوته کړي او ورته واضح کړي چې دا کار څنګه ښه کېدلی شو.

د ښوونکي له خوا د تدریس شوو معلوماتو په برخه کې شاګردانو ته د هغه د ضعیفو او ښو نقطو په ګوته کولو عملیې ته فیډبیک وائي.

فیډبیک د لیکلو له لارې هم کېدلی شي کله چې تاسې د شاګردانو څخه پوښتنې وکړئ او بیا ځوابونه ورته په لیکل شوې پاڼه کې ورکړي نو دې ته هم فیډبیک ویل کیږي. کله شاګردانو ته د ښوونکي له خوا لارښوونه شوې وي، هغوی هم کولی شي چې په خپل منځ کې یو بل ته فیډبیک ورکړي. (په لسم فصل کې د خپل ځان ارزیابۍ برخې ته مراجعه وکړي).

د فیډبیک نظریه کومه نوې نظریه نه ده، بلکه ډېر ښوونکي د پخوا مودې راهیسې ترېنه کار اخلي. فیډبیک د کومو لارو ورکول کېدلی شي؟
لومړۍ خبره دا ده، کله شاګردان یوازې د ښوونکي خبرو ته غوږ نیسي، نو په

دی صورت کی داسی څه نشته چه فیډبیک ورکړشی، په دی معنی چی فیډبیک او فعالیت سره تړلی دی. ددی لپاره چی فیډبیک ورکړشی لمړی باید د شاگردانو لپاره څه فعالیتونه ترتیب او وروسته امتحان شی، هغه داچی د شاگردانو د عملی مهارتونو داجراء کولو قابلیت ته د حقایقو په یاد ساتل او د افهام او تفهیم یا د مسٔایلو د حل په برخه کی د دی حقایقو څخه کار اخستل.

د غه ټیستونه ممکن رسمی امتحانونه وی. که دا کار وشی، نو ښوونکی له یوی خوا اضافی کار ته مجبور وی او له بلی خوا شاگردانو سره یوائی په امتحان کی د کامیابیدلو فکر او علاقه پیداکیږی چی په دی صورت کښی د شاگردانو څخه د خپل ټرینګ اصلی مقصد هیر شی. د فیډبیک او فعالیتونو لپاره ښه لاره دا ده چی دا د د تدریس یوه برخه وگرځی. که د ښوونکي له خوا شاگردانو ته لارښوونه شوی وی نو هغوی به وکولی شی چی خپل او یا د نورو شاگردانو کارونه امتحان کړي.

فیډبیک باید لاندینی دری برخی ولری.

الف: په فیډبیک کی باید د ښه کار کولو لپاره تشویق او تحسین موجود وی.

ب: فیډبیک باید د کارکولو عمومی معیار ته اشاره وکړی. د مثال په ډول «ښه یا بد» یا د ۱۰ څخه ۸ یا کامیاب.

ت: فیډبیک باید هره یوه غلطی او اشتباه په گوته کړی، او واضح کړي چی یو کار څرنگه ښه کیدلی شی.

---

د فیډبیک ورکولو یو مثال

تاسی ممکن یو شاگرد عملاً وگوری چی څرنگه د یو مریض مټ بنداژ کوی. کله چی شاگرد دا کار خلاص کړ، ممکن تاسی ورته ووائی چی ډیر ښه، تا دا کار په ډیره ښه توگه ترسره کړ بنداژ ښه کلک تړل شوی. او پخپله به سست نشی. تا د بنداژ په تړلو کی د صحیح روش څخه کار واخیست، او د کار معیار د قناعت وړ دی. خو تا باید اطمینان حاصل کړی وای چی د لاس موازنه صحیح وه او که نه. بل دا چی بنداژ د مریض څنگل د اوږی

محترمو ښوونکو :

دغه کتاب چې د فریډا ابټ د لیکنې د یوې برخې ترجمه ده ، د روغتیائي کارکونکو د ښوونکو لپاره ځینې هغه روښونه تشریح کوي ، کوم چې د هغوی سره د خپل کار په جریان کې د شاګردانو د ښې زده کړې په برخه کې مرسته کولی شي .

څرنګه چې د دې کتاب په یوه برخه کې د واضح او ساده الفاظو په استعمال ټینګار شوی ، نو د همدې اصل په اساس ، هڅه شوې ترڅو دغه کتاب په ساده الفاظو ترجمه شي . د ترجمې په خواکې بل مشکل د صحیح او معمولو مسلکي الفاظو استعمال و چې هغه برخه کې د لومړني روغتیائي ساتنې ښوونکي ښاغلي زلمي خان مرسته کړې ده .

هیله مند یم چې بر سیره په ځینو نیمګړتیا وو به دا کتاب د محترمو ښوونکو لپاره ګټور ثابت شي .

والسلام

ا . م . ( شینواري )

سیو دی چلډرن فنډ

پېښور

۲۹ / ۹ / ۱۹۸۸

امکان لري ددی کتاب ټول نظريات دهرچا لپاره ګټور نه وي ، خو دا دلوستونکو پوري اړه لري چې دهغوی لپاره کوم نظريات مناسب دي او هغه وکړي ترڅو يې استعمال کړي . اکثره ښوونکي غواړي چې په خپل تدريس کې همیشه د يو ډول روشونو او نظرياتو څخه کار واخلي ، ځکه چې هغوی ورسره اشنا وي اوعملي کول يې ورته اسان ښکاري .

دا کتاب بايد په ډير ښه او خلاص نظر ولوستل شي اوهغه وشي ترڅو په تدريس کې ددی نوو نظرياتو او روشونو څخه استفاده وشي او هيله ده چې دا به د ښوونکو او شاګردانو لپاره ګټور ثابت شي .

فليپ اپلتن
صحي ښوونکی
۱۹۸۸ - ۹ - ۲۹

| فصل | موضوع | صفحه |
|---|---|---|
| (٦-٣) | لنلهځوا به پوسبتني | ٧٤ |
| (٦-٤) | څوځوابه پوسبتني | ٧٥ |
| (٦-٥) | د ناروغه د تدابيرو مشکلات | ٧٨ |
| (٦-٦) | د پروژې راپورونه | ٨٠ |
| (٦-٧) | چيک لستونه | ٨١ |
| (٦-٨) | د کورس په دوران کې امتحان | ٨٢ |
| (٦-٩) | نتيجه ګيري | ٨٥ |

(فصل) (موضوع) (صفحه)

خپرونکې موسسه ..... نسیو دی چلډرن فنډ ( یو.کې.)

لیکوال ........ فریده ابت

ترتیبونکی ........ فلیپ اپلیتن

ژباړن ......... اختر محمد (شینواری)

کتونکی ...... زلمی (شیرزاد)

خطاط ....... محمد همایون

رسام ......... وحیدالله (باقی زاد)



# د ښوونې او ازموینې روشونه

## د روغتیایي کارکوونکو د ښوونکو لپاره





# TEACHING AND ASSESSMENT METHODS

For trainers of health workers








# فهرست



## لمړی برخه

(فصل) (موضوع) (صفحه)

| (فصل) | (موضوع) | (صفحه) |
|---|---|---|



## دویمه برخه

# دکتاب معرفی

دا کتاب د فریلو ابتی ( Teaching for better learning ) دکتاب یوه برخه ده چې مقصدئې د روغتیائی کارکونکو لکه (صحی سوپروایزرانو ، صحی کارکنانو ، سنترانو او یا ال ، ایچ ، وی ) د تدریس په برخه کې د ښوونکو سره په افغانستان او پاکستان کې مرسته ده او عمومي نظریات ئې په هر ځای کې عملي کیدلای شي . دا کتاب د شاگردانو د ښه زده کړې په هکله د ښوونکو د پوهې د زیاتوالی لپاره استعمالیدای شي .

دکتاب لومړی برخه څرگندوي چې څرنگه د مختلفو درسي روشونو څخه د پوهې ، افهام او تفهیم مهارتونو ، عملي مهارتونو او طرزالعملونو د تدریس په برخه کې کار اخستل کیږي ، کوم چې د شاگردانو په زانلونکې کار کې ترینه استفاده کیدلی شي . د دې په څنگ کې د شاگردانو په وړاندې د ښوونکي د سلوک د بیلا بیلو اړخونو یادونه هم شوې ده .

په دویمه برخه کې د امتحان د بیلابیلو روشونو یادونه کیږي او واضح کوي چې څرنگه د شاگردانو د زده کړې پوهه او ضعیف نقاط معلومیدلی شي .

دا کتاب یوازې د ښه زده کړې اصول نه تشریح کوي ، بلکه دا هم واضح کوي چې ولې دغه روشونه او د ښوونکو طرزالعملونه ، د شاگردانو د ښې زده کړې په برخه کې مرسته کوي . د دې لارې ښائې لوستونکي د تدریسي پیشنهاداتو د دلایلو په هکله څه پوهه ترلاسه کړي او هیله ده چې د ځینې تدریسي نظریاتو د عملي کولو لپاره به تشویق شي .